# ځرک

پنځلسم کال، څلورمه، پرلپسي ۱۰۵مه ګڼه،
۱۳۹۷ل، شعبان المعظم۱۴۳۹هـ ق، مې۲۰۱۸م

## دجنرال نیکلسون اوبه شوي فشارونه !!

- دلیل ناکامی روند ثبت نام؛ بی باوری مردم بر رژیم
- ټرمپ دامریکا ولس ته! د افغان جګړې اصلي حالت عکاسي کړ...!
- طالبـان ولې سـوله نه غـواړي؟!!
- الخنـدق به افغانســتان د اشغالګرو وروستی خندق کړي
- کمونیزم او د افغاني کمونستانو جنایاتو ته یوه کتنه

## امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله از نـګاه مـن

## لەداعش نه

دکابل اداري څه کتنه ترلاسه کره...؟!

## مدرسه، سپینه ږیرې، چورلکي، بمباري








علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

پنځلسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۰۵مه ګڼه، ثور۱۳۹۷ل، شعبان المعظم۱۴۳۹هق، اپریل۲۰۱۸م

امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکتر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۱۸۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۲۴۰ کلدارې |
| امریکا : | ۶۰ ډالره |
| اروپا : | ۶۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۱۵ افغانۍ<br>۲۵ کلدارې |

یادونه

حتمي نه ده چې په ځرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :

srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# د جنرال نیکلسون اوبه شوي فشارونه !!

په افغانستان کې داشغالګروامریکایي قواووقومندان ( جنرال مک نیکلسون ) تیره میاشت وئیلي وو چې دوئ به په طالبانوجنګي ، مدني اومذهبي فشارونه ډیرکړي ترڅوهغې سولې اوجوړي ته امادګي وښیی په کوم ډول یې چې امریکاتمه اوهیله لري

له پوځي فشارڅخه دنیلکسون هدف داوو چې هوایي بریدونه ، بمباری اوپه اصطلاح ځانګړي‌عملیات به زیات اوډیرکړي ، له مدني فشارنه یې موخه دهغویوڅواستخباراتي ټولیو او اشخاصود(پرلت ) په نامه ناستې وې چې په هلمند او ځینونوروسیموکې دسولې په نوم جوړي شوي وي

دامریکایي جنرال له مذهبي فشارڅخه مطلب داوو چې په ګڼ مسلمان میشتي هیواد( اندونیزیا)کې به دافغانستان ، پاکستان اواندونیزیایوشمیرملایان راټولیږي اوپه افغانستان کې به دنیلکسون له فرمایش سره سم دافتواورکوي چې دامریکایي قواوو اوهم دکابل دلاسپوڅي رژیم په خلاف روان جنګ دیني صبغه نلري

په پوځي برخه کې دنیلکسون فشارهماغه وو چې په مدارسو، جوماتونو، دقرانکریم دحافظانوددستاربندیوپه مراسماواومسکوني سیمویې دبې رحمه بمباریولړئ پیل اوپراخه کړه،دهیوادپه ډیروبرخوکې یې دعاموخلکوبې شمیره کورونه اوجونګړي په دې نوم په خښو کړو مائنونه اواري کړي چې هغوئ دطالبانو همکاران ول ،کڼ بازارونه اوهټی یې په دې جرم دملی اردواوسپیشل فورس په غلواودارمارانولوټ اوتالان کړي چې کواکې لدغوبازارونو اوهټیوڅخه طالبان سواداوي اخلي

یعني دنیکلسون پوځي فشارهمدغه وه چې ملکي وګړي یې مذیدوکړول ، وي لوټل اوزیانونه یې وروارول ، خوله بل لوري مجاهدینو دنیکلسون دهمدغه پوځي فشارپه اوږدوکې دالخندق کفرځپونکي پسرلني عملیات پیل کړل چې په ترڅ کې یې لسګونه امریکایان دبګرام په اډه اونوروسیموکې خول اومول وکرځول ، په سوونه ګوډاګی ملیشې ، اربکیان اوخاص روزل شوي امریکایي ځواکونه یې ګوډومات اووژل ، په لسګونوپوستوسربیره یې کنې ولسوالی لاسته راوړي یواځې دفراه په ولایت کې دیونیم میلون ډالروپه ارزښت جنګي توکي ، مهات اووسلي داسلام دسپاهیانولاسته ورغلي .

مدني فشاراوپرلت خودنیلکسون دومره شرمیدلی اوخندنی وو چې له ټول زور اوهلوځلوسره دګډونوالو شمیرېې ټول ټال ۲۰۰ تنوته ونه رسیده ځکه عام ولس دپرلت کرایه شوي څیري له نیږدي ولیدي چې ټول استخباراتي کارکونکي اودنشه یی توکومعتادین ول نواستفراق یې کړل

پاتې شومذهبي فشار؛ هو په اندونیزیاکې دنیلکسون له طرحې اوفلان سره سم غونډه جوړه شوه اودافغانستان ، اندونیزیااوپاکستان یوشمیرملایانوپکې برخه واخیسته ؛ خوداللّه تعالی کارونه اونصرت ته کوره که هرڅومره دګوډاګي رژیم درباري ملایانواومتدصدیانو هلي ځلي وکړي چې په غونډه کوم ښکاره اثرمرتب کړي اوکومه امریکانوا فتوا اوپریکړه صادره کړي ؛ خوهیڅ یې هم ترلاسه نشوکړای ، خالي لاسونه اومړه سټونه بیرته راستانه شول

نواوس جنرال نیلکسون ته وایوچې دغه درې واړه شیطاني حربي اوفشارونه خودې دبوسوپه بیه اودوپیسوشول په هردام کې له ذلیل اومختوري حالت سره مخ شوي اوس به لدې ورسته نوروکومو فشارونواوچلوټوته پناه وړي ؟

باورلروچې دامریکایانواودهغوئ دجاسوسانوټولي راټلونکي دسیسي اونیرنګونه به دنیلکسون دورستیو فشارونو په څیرناکام نامراده اوپه نطفه کې به شنډیږي . ان شاالله تعالی

# امریکایان وایي:

## د ملکي افغانانو وژل او ربړول د هغوی پوځي اصول دي !!؟

دامریکارسمي سرچیني وایي چې په افغانستان کې دامریکایي پوځیانوله لوري ټولي کړني سمي اود پوځي اصولوپه رڼاکې رواني او ترسره کیږي تردې که ملکي افغانان هم دهغوی له لوري وژل کیږي اوربړول کیږي داکارورته جائزاوروا عمل دی .

دامریکایي پوځ دعامه اړیکومشر (کریستوفر ګرې ) ویلي هغه امریکایی عسکربه کله هم کومي محکمي ته په دې جرم اوتور وړاندې نکړای شي چې ګواکی هغه په افغانستان کې دملکي خلکوپه لوړه‌زي کړي اوملکیانوته یې زیانونه اړولي ددغه امریکایي چاروا کي په خبره امریکایي عسکرچې هرڅه ترسره کوي دنظامي اړتیاوو له مخي یې کوي.

په رښتیاهم نوموړي امریکایی اصلي اودخپل زړه خبره کړي اودافغانانوپه اړه یې دامریکایی اشغالګرسیاست اوقاتلي څیري له مخه پرده پورته کړي

داسلام اوبشریت دغوشرمښانوله تیرو ۱۷ کلونوراهیسي په افغانستان کې ټوله جګړه دافغان بې دفاع اومظلوم ولس په مقابل کې ترسره کړه ، دهوایی بمباریو، ډرون بریدونواوزهریله وسلوپه وحشت سره یې له دری لکه ډیر ملکي افغانان شهیدان او یونیم میلون تنه یې شکنجه کړل ،د مسکوني سیمو په بمبارسربیره یې سوونه جوماتونه ، مدرسي ، مکتبونه ، اوصحي مراکزیې په قصدي ډول له منځه یوړل.

وړمه ورځ د کابل رژیم د کونړیوه پخواني والي هم دخبروپه یوه ګردي میز کې د کریستوفر ګرې دخبرو تائید وکړ چې په افغانستان کې امریکایان ځکه ملکي افغانان په بیدردی وژني او په مسکوني سیمو تر ټولو غټ بمونه اچوي چې مخه یې دهغه امنیتي تړون له مخي چې کابل رژیم ورسره لاسلیک کړی خلاصه ده اوڅه چې کوي هغه ځانته جائزعمل بولي

والی وویل چې کله به مونږ امریکایانو ته دهغوي دچورلکوپه توسط دملکي خلکو دمرګ ژوبلي خبره وکړه نه داچې زمونږ دغه پوښتنه به وریاندي بده لګیده بلکي مونږ به یې لدې خبري هم منع کولو چې په دغوملکي زیانونوبه خواخوږي هم نه څرګندوی اود قربانیانوله کورنیوسره به غم شریکي هم نه کوی.

که امریکایان او لاسپوڅي رژیم په دې سوچ اوفکر کې وي چې په ملکي وګړو وحشت اودهشت به دوئ ته کومه فائیده ورسوي اودزوراوجبرله لاري به افغانان دیته اړکړي ترڅودامریکایی غلامی طوق په غاړه کړي اودخپلواکی ګټلوله داعیی به تیرشي ددوئ دغه فکراوا ټکل وچ خیال اودفن شوی خوب دی؛ چې په تیرو ۱۷ کلونو کې یې هرڅه دسرپه سترګو ولیدل

اشغالګراومزدوران به پوه وي چې دیوه افغان په شهیدولو اوربړولو سره لسګونه نورافغانان دخپل شهیدانتقام ته رادانګي اوترڅو یې چې دخپل عزیز اودوست غچ یوپه لسه نه وي اخیستي وسله په ځمکه نه ږدي او کورونو ته نه ستنیږي.

نو که امریکایان خپل قاتلین خپلو محکمو ته نه وړاندي کوي داکار دالله پاک په مرسته خپله افغانان ډیرښه ترسره کولای شي دجهاد په سپیڅلي توره یې له تیرو ۱۷ کلونو راهیسي په زرهاوو امریکایی حرامیان منطقی انجام ته ورسول اوزړونه یې ښه پري یخ کړل اونور به یې هم پري ساړه اویخ کړي .



# له داعش نه

## د کابل اداري څه ګټه ترلاسه کړه ...؟!

ويس افغان

يو شی چې اوس تقريباً دوست - دښمن، خپل- پردی، ليري او نژدې ټول ورباندې په يوه خوله ښکاري؛ هغه دا دی چې امريکا چونکه په افغانستان کې د طالبانو په وړاندې ماتې خوړلې، امريکا ونشوای کولای چې نه يوازې طالب له منځه يوسي بلکې د هغه د پرمختګ او نور ځواکمن کيدلو په مخنيوي کې هم پاتې راغلې.

نو اوس شکست خوړلې امريکا هڅه کوي چې که په هر ډول وي؛ بايد د طالبانو په مقابل کې د مزاحمت او سرخوږي جوړولو يوه وسيله پيدا کړي.

چون له امريکا سره دا اراده نشته چې په افغانستان کې، آبادي، ملت جوړونه او نظام سازي رامنځ ته کړي؛ بلکې دلته هم فقط د منځني ختيځ په څير د ګډوډيو او حالاتو د خرابولو په لټه کې اوسي.

له همدې ځايه ده چې د داعش جن ته وده ورکول يې د يوې پټې استخباراتي ستراتيژۍ په حيث انتخاب کړی، په ښکاره که څه هم د موربم خطايي ازمايښت د داعش پرضد تلقي کوي، خو په پټه په کانتيرونو کې وسلې، افراد او توکي ورته رسول کيږي.

دا خبري کومه پروپيګنډه نه، بلکې د کابل د امريکايي پلوه حکومت د برحاله او مخکنيو چارواکو د خپلو سترګو مشاهدات او اعترافات دي.

حامد کرزي په ځلونو ادعا کړې چې ګڼ مستند شواهد ورسره شته چې داعش د امريکا د لاس آله ده ، او په افغانستان کې د بهرنيانو له پوځي اډو څخه اکمالیږي.

نوموړي په يوه مرکه کې وويل: « له تېرو دوو کلونو راهيسې هره ورځ د سيمې خلک، قومي مشران، دولتي چارواکي او رسنيوال ماته راځي او خبر را کوي چې ناپيژانده بهرنۍ الوتکې په پلانۍ منطقه کې کښته شوي او له پلانۍ سيمې اوچتې شوي، داعش ته مرستې او امکانات وررسوي، دی وايي، زما سره په دې هکله ګڼ شواهد موجود دي ».

د ولسي جرګې دويم مرستيال ظاهرقديرهم په وار وار دا خبره په قسمونو سره کړې چې داعش ته په کانتيرنو کې وسلې او په چورلکو کې يې جنګيالي يو او بل ځای ته انتقاليږي.

نوموړي تېر کال ولسي جرګې ته په وينا کې وويل: تاسو ته زه عيني شاهدان راولم چې درې ورځې وړاندې د ننګرهار ولايت «نرۍ اوبو» سيمه کې داعش وسله والو ته د ملي اردو او پوليسو په موجوديت کې، په کانتينر کې وسله ورکول شوې ده.

نوموړي بيا په قسم سره وويل چې: لس ورځې مخکې د بهسودو په ولسوالۍ، بهار آباد کلي کې يوې چورلکې د داعش 50 جنګيالي ښکته کړي دي.

قدير وويل، ولسي جرګه دې يو بې پرې هيئت وټاکي، زه به د خپلو ټولو ادعاوو په اړه ولسي عيني شاهدان ورته حاضر کړم، بيا دې دوی قضاوت وکړي.

ظاهر قدير وويل: دا ټوله لوبه د بهرنيانو په لارښوونه، هغو پنځو کسانو روانه کړې چې د دوی پرسر ناست دي او د افغانستان

د خلکو په سرنوشت لوبې کوي. (اشاره يې د ملي امنيت شورا ته وه)

قدير د طالبانو د وياند ذبيح الله مجاهد هغه ادعا سل سلنه تأييد کړه چې ويلي يې وو: څو ځله يې په ننګرهار کې داعش د نهايي محوې او تصفيې تر حده رسولی خو ډېر ژر سيمې ته امريکايي الوتکې راغلې او په طالبانو يې بمبار کړی او داعش ته يې د بياځلي ساه اخيستلو او پښو ټينګولو موقع ورکړې. قدير وويل: زه په قسم درته وايم چې طالبانو په چپرهار ولسوالۍ کې داعش جنګيالي کلابند کړي وو؛ خو بهرنيو ځواکونو د داعش د ژغورلو له پاره پر طالبانو بمبار وکړ.

د پارلمان يو بل وکيل وويل : که چيري د داعش راډيو د ننګرهار له هوايي ډګره؛ چېري چې بهرنيان ديره دي؛ نشرات نه کول، ما د ټولو خلکو په مخکې په دار وځړوئ.

په دې اړه د نورو چارواکو، وکيلانو، عام ولس او د ګاونډيو هيوادونو د سفيرانو په وار وار دا ډول په سلګونو ادعاوې شته چې داعش يې د امريکا پروژه ګڼلې او وايي چې د افغان اداري تربغل لاندې يې پالنه کيږي. چې اوس د شک له حدودو وتلې او د پوره رسوايي ترحده رسيدلې خبره ده.

مګر سوال دا دی چې آيا داعش افغان حکومت ته هم کومه ګټه کړې او کنه فقط د امريکا د حکم د تعميل د مجبوريت په خاطر يې دې خطرناکې لوبې ته اوږه ورکړې،؟ او آيا د کابل اداري تراوسه د دې کار نقصان هم درک کړی چې دوی ته او په مجموع کې يې افغانستان ته رسولی..؟

زه فکر کوم چې د کابل اداره اوس په دې ښه پوه شوې چې د داعش ملاتړ د هغوی لپاره د ګټې پرځای سل٪سلنه په تاوان دی، خو چون د امريکا د پروژو پرمخ بيول د هغوی يو مجبوريت دی؛ ولې چې د ژوند د تنفس ټولې توکمې يې د امريکا په واک کې دي؛ نو ځکه يې د زهرو د غوړپ تيرولو په شان، د يادې پديدې (داعش) پالنې ته ټټر ورکړی دی.

راځئ چې حق او حقيقت ووايو!

کنه نو داعش د کابل د ګوډاګۍ اداري لپاره څو واضح نقصانات کړي چې هرڅوک يې له ورايه د سر په سترګوويني.

1 - څومره ظلمونه او بشري جنايات چې په دا دري کاله کې د افغانستان په ختيځ او ځينو نورو سيمو کې د افغانستان ولس ته د داعش له لاسه رسيدلي؛ قلم يې د ليکلو ، ژبه يې د ويلو او غوږونه يې د اوريدلو تاب نلري. چې دا ټولي کړني يې د کابل د ګوډاګيو عسکرو په پټه او ښکاره سرپرستۍ کې ترسره کړي. ښکاره خبره ده چې دې کار د کابل لاسپوڅی رژيم نور هم له ملته ليري کړی او ملت يې له دوی لري کړی.

2 - د ځينو خاصو هغو لړکيو (هزاره وو) پرضد چې هغوی د کابل د حکومت کليدي قوه کار او ترټولو آساسي ملاتړي بلل کيږي؛ د داعش کرکجنې وحشيانه کړنې؛ د دې سبب شوي چې هغوی هم له حکومته فاصله ونيسي. او په اصل کې د ارګ کارکنان د خپل قتل عام دښمنان وګڼي.

3 - داعش چې امريکا د کوم هدف لپاره کاروي چې په کور دننه د طالب د مقاومت د کمزوري کولو نه علاوه، په راتلونکي کې خپلو رقيبانو ته د داعش په صدور سره، د هغوی په هيوادونو کې دننه سياسي سرخوږی جوړ کړي؛ لکه چين، روس، ايران او د دوی درو واړو اړوندو نورو هيوادونه ته؛ نو هغوی ټول اوس د کابل ګوډاګۍ اداري ته د افغانستان د حکومت نه، بلکي د امريکا د يو بې واکه، لاسپوڅي په سترګه ګوري. که څه هم په ښکاره خو زړه ماتي سياسي راشه درشه ورسره لري؛ ولي په حقيقت کې هرڅوک پوهيږي چې دغې چاري د کابل اداره په کلي توګه بدنامه کړي او سياسي اعتبار ته يې شديد نقصان ور رسولی دی.

دا هغه څه دي چې ښيي د کابل ګوډاګۍ اداري د داعش په پالنه کې نه يوازې دا چې څه ترلاسه کړي نه دي، بلکې برعکس ډېر څه يې ورکړي بايللي دي.

پای .....!!

# امیرالمؤمنین

# ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله

## از نگاه من

**الحاج ملا عبدالسلام سعادت**

(قومندان پیشین فرقهء ۵ جهادی کابل و عضو فعلی کمیسیون نظامی)

**سیرت ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ بیشتر ممثل و مشابه سیرت امیرالمؤمنین عمر فاروق (رض) است، هرگاه سیرت فاروق اعظم (رض۹) را مطالعه بکنیم بیشتر مزایا و اوصاف عمر اول (رض) را در شخصیت عمر ثالث رَحِمَهُ ٱللَّهُ می بینیم، ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ اگر از یکسو ما مسئولین امارت را توصیه می کرد که با ملت یکسان باشید و نباید زندگی مرفه و امتیازی داشته باشید، از سوی دیگر لباس، خوراک و نشست و برخاست خود آن امیر فقید نیز از ملت و سایر مجاهدین فرقی نداشت، یکبار (پیش از فتح کابل در زمان تحریک) از مطبخ فرقهء گرشک غذای خاصی برای امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ آماده گردید، آن شخصیت فقیرمنش مسئول مطبخ را تهدید و توصیه کرد که نباید امتیازی در غذا باشد، این نیز از ویژگی های مرحوم عمر ثالث رَحِمَهُ ٱللَّهُ بود که زندگی و شخصیت وی قبل و بعد از امارت یکسان بود و تفاوتی نداشت، زندگی بسیار ساده و بی تکلف.**

**بلی، عمر ثالث رَحِمَهُ ٱللَّهُ اگر از یکسو قیادت و زعامت تحریک را به دوش داشت، از سوی دیگر همواره دوشادوش مجاهدین در سنگرها و خطوط جنگی می جنگید و در همان اوائل که بنده با تحریک اسلامی طالبان معیت داشتم مرحوم ملا صاحب در جنگهای سنگین، کجکی و موسی قلعه در برابر فرماندهان شر و فساد شخصاً سهم گرفت، زمانیکه ما از هلمند به سوی غرب کشور (هرات وغیره) تشکیل می شدیم نیز ملا صاحب مرحوم حضور داشت و در فراه رود (ولایت فراه) موترش از بمباران تورن اسماعیل خان نجات یافت، یکبار در فراه رود در مدرسه ای که ما مستقر بودیم اوطاق به اوطاق گشت و جویای احوال ما شد.**

**گرچه این قصه ربطی به مضمون ندارد اما درس زیبای با خود دارد، یکبار در همان منطقه دو شب و روز نان نیافتم، در حال بسیار گرسنگی یکجا نان های خشکیده را پیدا کردم، معلوم نبود که بست روزه کهنه بود و یا یک ماهه، یک جوی که آب ریگ آلود داشت نزدیک بود، من چهار طرف یک بخش آب را بند کردم و نان را داخل آن انداختم، سپس در پهلوی جوی آب خواب شدم، لحظاتی پس تر بیدار شدم دیدم نان نرم شده است، آن را خوردم، لذتی که آن نان داشت در زندگی خود دیگر نیافتم.**

در مورد اولین دیدار مرحوم امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ باید بگویم، ما ده ها تن طلباءِ مدرسه به شکل گروهی در اوائل تحریک برای پیوستن به تحریک اسلامی طالبان به فرقه قشلهٔ جدید (قندهار) رفتیم و فردای آن روز به فرقهٔ گرشک (هلمند) تشکیل شدیم، در همان جا نخستین بار مرحوم ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ را دیدم، امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ و شهید ملا محمد آخند (فرمانده عمومی نظامی تحریک اسلامی طالبان) بیش تر مشوره های شان را در اوطاق ما انجام می دادند، ما در واقعیت در همان روزهای اول از برخورد شایسته و زیبای ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ بسیار متاثر شدیم، سپس پس از فتح کابل نیز بارها در قندهار و کابل با امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ ملاقات کردم، دروازهٔ ملا صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ برای همگان باز بود.

یکی از اوصاف عمده و ویژهٔ مرحوم امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ این بود که در سخت ترین و دشوار ترین روزها از مجاهدین دور نمی ماند و برای حل مشکلات آن ها می کوشید، پس از غدر جنرال عبدالملک و عقب نشینی طالبان از خط های شمالی شخصاً به خط ها آمد و سنگرهای مجاهدین را دوباره مستحکم کرد، ما پس از سقوط کابل در همان شب و روزهای که امریکا و ناتو به شدت بمباران می کردند از طریق مخابرهٔ نصرت (که وابسته به خود مرحوم ملا صاحب رَحِمَهُ ٱللَّهُ بود رابطه کردیم، برای ما هدایت داد که نزد مولوی جلال الدین حقانی صاحب در شرق کشور باشید، همچنان ما در ۲۵ رمضان همان سال به فرمان امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ و سرکردگی حقانی صاحب از گردیز (ولایت پکتیا) مبارزه و مقاومت را مجدداً آغاز کردیم.

مرحوم امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ از تبعیض و عصبیت های قومی و نژادی به شدت نفرت داشت، برای اقوام غیر پشتون بسیار ارزش قائل بود و می کوشید همه اقوام جایگاه مناسب در امارت اسلامی داشته باشند، ما برای فتح کابل با شهید ملا امین الله بورجان رَحِمَهُ ٱللَّهُ از مرکز لوگر به ولسوالی ازره رفتیم، شهید ملا بورجان رَحِمَهُ ٱللَّهُ پس از فتح ازره یکعده دلگی مشرها را با خود گرفت و عده ای دیگری را به شمول بنده دوباره به چهارآسیاب روان کرد، زیرا دران جا در خط کسی نمانده بود، آن ها از طرف شرق (یعنی ننگرهار و لغمان) وارد کابل شدند و ما از طریق غرب از راه ریشخور داخل کابل شدیم (و ما چند تن طالبان نماز با جماعت را به امامت این حقیر در مسجد وزارت داخله خواندیم) بنده با بست نفر وارد کابل شده بودم اما به فرمان امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ (که در حقیقت اهمیت دادن به اقوام غیر پشتون بود) به حیث قومندان فرقهٔ ۵ جهادی کابل مؤظف شدم.

شخصیت مرحوم امیرالمؤمنین رَحِمَهُ ٱللَّهُ هر زمان متوازن بود، نه در اثنای کامیابی وقار و سنگینی خود را از دست می داد و نه در هنگام شکست متزلزل و بی حال می شد، وی در هر حال بر مجاهدین و مسئولین خود اعتماد داشت و شکار توطیه های دشمن و تبلیغات بیگانگان نمی شد، حرف های طولانی دیگران را به دقت گوش می داد و سامع خوبی بود، اما جواب بسیار کوتاه، پر محتوی و قناعت بخش می داد.

ملت ما به هدف اصلی مبارزهٔ طولانی و قربانی های تاریخی جهاد شوروی نرسیده بودند، رهبران که در سال های مقاومت در برابر نظام کمیونستی لاف از اسلام و نظام اسلامی می زدند آرمان های مردم را شکار اهداف شخصی و گروهی خود ساختند، مبارزهٔ امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رَحِمَهُ ٱللَّهُ و قیام امارت اسلامی در واقعیت آرمان بزرگ افغان ها را برآورده ساخت، رحمه الله تعالی.



# ټرمپ دامریکا ولس ته!

## د افغان جګړې اصلي حالت عکاسي کړه...!

■ بشیر ارمان



مشهورې امریکایي ورځپاڼې «واشنګټن پوسټ» په وروستیو دجمهوریت پال ګوند د سنا تور«رنډن پاول» له قوله لیکلي: امریکا له افغانستانه دخپلو ځواکونو دویستو په پلان فکر کوي د«رنډپاول» په وینا: ټرمپ ورته ویلي«له دې دوزخ ځانونه باسو»

د تیرو څلورو لسیزو راهیسې زموږ وطن او خلک د پردیو لخوا د تپل شویو جنګونو په بټ کې پولې. کبري اول دشوروي یرغل اودپردیپالوکمونستانو نه بښونکو تاړاکونوزموږ هېواد او ولس ته نه هیریدونکې بدمرغۍ او ناخوالې راوړې دکومو له امله چې زموږ ولس زیاتې تودې و سړې ولیدې، په ملیونو خلک شهیدان او ټپیان شول چې ترننه هغه ټپونه ندي ملهم او جوړشوي کوم چې دوحشي شورویانو او د هغوی دغلامانو له لاسه زموږ ملت خوړلي

باشهامت افغان ولس دشوروي اتحاد سرو لښکرو او بې شرمه کمونستي ډلګیوپه وړاندې مات نشو بلکې په ښه میړانه دخپل وطن دازادۍ او استقلال لپاره پورته شول او د لویو او تاریخي قربانیوپه برکت یې افغانستان کې دشوروي اتحاد لښکرې او بې شرمه کمونستان مات شول تردې چې دافغانانو دقربانیو له برکته دشوروي ښامار له داړو دمنځنۍ اسیا لس مسلمان هېوادونه هم ازاد شول

تمه وه چې د دومره سترګټاټ وروسته به افغان و لس د یو څه ارامۍ ساه واخلي او جنګونه به کرار شي خو دنړۍ زورواکود سترجهاد له ګټو افغانان محروم کړل او دکمونستي ملعون رژیم دپرزیدو وروسته بیا هم د کمونستي ملیشو له شتون څخه ملاتړ وکړ او دپخوا پشان هغوی په قدرت کې سهیم وګرځولپه خاصه توګه کله چې ځیني مجاهدین پخپلمنځي سیالیو کې سره په جنګونو کیوتل، په دې سره کمونست جنرلان نور پسې مضبوط شول آن تردې چې هغوی ځانونه د ځینو جهادي تنظیمونو په

چوکاټ کې هم ځای کړل چې په دې سره په جهادي ارمانواو اهدافوخاورې واوښتې

طالبانو دهېواد او ولس ژغورنې په موخه پاڅون وکړ او دجهاد ډیری ارمانونه هغوی پوره کړل او دهېواد ۹۵ سلنه خاوره یې دجنګونو له شر ه وژغورله، لیکن امریکا او کفري هېوادو ته دهغوی کړه وړه خوښ نه وو، دهغوی لخوا د ډاډمن امنیت تامنیدل او شرعي نظام پلی کول ورته له زغم بیرون وو با لاخر دیوولسم ستمبر په بهانه یې په افغانستان مخامخ ناروا یرغل راوړو، په دې سره یوځل بیاپه افغان ولس شومې ورځې راغلې او له جبرانیدونکو ستونزو او مشکلاتو سره مخ شول کوم چې تردې مهاله پخپل ټول شدت او ځواک سره دوام لري خو باتور افغانان بیا هم ستړي نشول، وینو چې له تیرو اوولس کلو را هیسې دامریکا یې طاغوت سره تش لاس خو دایمان په وسله سمبال مجاهدین او طالبان په جګړه بوخت دي او دامریکالپاره یې دافغانستان لویشت لویشت دوزخ ګرځولې

هو! دشک پرته امریکا ته دخپلې سرتمبګۍ او غرور په وجه تاریخي او نه اټکل کیدونکي زیانونه ورسیدل، په زرګونو زره عسکر یې مړه اوټپیان شول د رسنیو له قوله: افغانستان کې دامریکا یې عسکرو دسرزیانونه دومره ډیر دي چې دامریکا حکومت دهغوی اصلي ارقام پټوي او بیرون ته یې په اړه کم ارقام عرضه کوي اودزیاترو عسکرو مړي له افغانستانه دانتقال وروسته دعربي هېواد بحرین د سمندر په تل کې جوړو سرد خانوکې خوندي کوي ولې ډار لري چې که د امریکا خلکو خپل دوره زیات زیانونه ولیدل ممکن په توله امریکا کې د جنګ پرضد پراخ غبرګونونه راوپاروي

دا چې روانه جګړه اوولس کلوته وغځیده، نړۍ کې دامریکا دیوځ د جنګي وړتیاوو په اړه پوښتنې پیدا کړې! ایا امریکایې ځواکونه دیو موټې بې وسلې طالبانو او مجاهدینو په وړاندې جګړه بایللې؟ دې او دیته ورته نورو پوښتنو ته دځواب نه مندلو په وجه امریکا یې جنرلان سرګردانه دي او کله نه کله په اشارو اوکنایو کې تري دخپل نړیوال غرور ټکنی کیدو په اړه خبرې راوځي!

دکتونکو په اند: که امریکا اوولس کاله نور هم په جنګ کې تیر کړي بیا به هم بری ترلاسه نکړي!! دهغوی په نظر: افغانستان جګړه دامریکایانو لپاره دستوني داسې هډوکی ګرځیدلی چې نه یې تیره ولی شي او نه یې بیرته قی کولی شي! نه جګړه ګټلی شي او نه دجګړې څخه ځان ایستلی شي

په دې سربیره چې افغانستان کې دجګړې طولاني کیدل دافغانستان په ګډون دټولې منطقې لپاره هم دروندزیان او ګواښ دی، ولې هومره چې په دې ناروا جګړه کې افغانان ځوریږي، ستونزې او کړاونه زغمي، هومره دمنطقې هېوادونه او ولسونه هم د ډول ډول نا امنیو او خطرونو ګواښ سره مخ کوي، هم دا لامل دی که جګړه نور طول نیسيـ دابه د افغانستان او سیمې دبدقمستۍ په معنی وي! حتمې ده چې دافغانستان او سیمې ولسونه په دې اړه حساس او بیدار اووسي او په هره بیه چې ممکن وي باید هڅه وکړي چې دامریکا له شره افغانستان او منطقه دواړه خلاص کړي لنډه داچې د امریکا لپاره افغانستان کې دجګړې د پای ته رسولو پرته بل معقول چانس ندی پاتې، په امریکا نړیوال سیاسي فشارونه باید ډیر شي چې هغه د جګړې دپای ته رسولو په اړه خپل پلانونه روښانه کړي! که بالفرض امریکا بیا هم جګړه پای ته نه رسوي یقیناً به ګاونډي هېوادونه او ولسونه هم متضرر کېږي

راځو دیته چې امریکا یې چارواکي باید دا محسوس کړي چې په افغانستان کې دوی دبري کوم چانس نلري داسمه ده چې د دوی ځینې پوځي جنرالان دتاریخ دمحاکمې له ډاره د ځانونو ژغورلو لپاره کله په یوه او کله




په بله پلمه د جنگ اوږدولو غږونه کوي څو سبا ته په تاریخ کې د دوی نومونه دشکست خوړونکو جنرلانو په فهرست کې رانشي، ددې لپاره هر جنرال کوښښ کوي چې دده په دوره کې دامریکا دا تاریخي زوال رسماً اعلان نه شي، په سپینه ماڼۍ او کانگرس هغوی خپل نظرونه تحمیلوي او دجنگ غځولو تصویبونه تري اخلي خودا ترکومه؟ نور دامریکا سیاستوال هم پوی شوي چې دجنرلانو لاپې شاپې دجگړې مسیرته تغیر نشی ورکولی، کله چې ټرمپ ولسمشر شو هغه هم په پیل کې دجنرلانو لهجه کاروله او دجگړې گټلو بیدریغه لاپې شاپې یې وکړې، دجنوبې ایشیا په اړه یې نوې تگلاره اعلان کړه، نوې جنگي الوتکې یې راولیږلې، بې ۵۲ یې بیا راوستوله، ډله یزې وژنې ډیرې کړې، په کلیو یې چاپې او بمباردونه و کړل، مدرسې او روغتونونه یې بمبارد کړل د دستار بندیو په ډکو مراسمو یې بمونه وغورځول ددې ټولو سربیره بیا هم دامریکا په اړه مثبت بدلون رانغی، دجهاد اومقاومت سنگرونه هغسې پیاوړې پاته شول داسلامي امارت تر واک لاندې سیمې پراخه شوې او ورځ په ورځ دمجاهدینو په بریدونو کې زیاتوالي او دامریکا یانو او گوډاگي رژیم عسکزو دمرگ ژوبلې سلنه لوړیږي ددې ټولو وروسته ټرمپ مجبورشو چې ځان له جگړې اوباسي او دپای ته رسولو په لارو چارو دخلکو له استازو سره وغږیږي او افغانستان ته د دوزخ نوم په ورکولو سره یې دخپل ولس ته دجگړې اصل حالت عکاسي کړ چې دوی دلته په څه ډول حالت کې قرار لري!! له دې وروسته به هیڅ امریکایې له افغانستانه دعسکرو ویستلو له دریځ سره مخالفت ونکړي، ځکه دوزخ هیڅوک دځان او خپلو او لادونو لپاره نه خوښوي او خامخابه دژر ویستلو غوښتنه کوي....

# طالبان ولې سوله نه غواړي؟!!




عابد

له څه مودې را پدېخوا دا ګنګوسي و چې طالبانو ولې د سولې په اړه سکوت اختیار کړی او په دې اړه یې دکابل حکومت وړاندیز ته ولې د" هو" یا " نه" ځواب نه دی ورکړی؟

راځئ یو وار په افغانستان کې دسولې صورت او بڼه انځور کړو چې که په افغانستان کې سوله وي، نو هغه به څه ډول وي؟ څه تغیر به ورسره راځي، داشخاصو او مقامونو په تغیر سره ده، که دنظام په بدلون سره؟! سوله څه ډوله سوله؟!؟

سره له دې چې دسولې ضرورت او اړتیاهرڅوک مني او هراړخ یې ظاهراً مخالفت نه ښیي، خو دسولې په بڼه هیئت او پېژندنه کې هرلوری بېلابېل تعبیرلري او هرچا سولې ته په خپل ذهن کې یوخپل صورت جوړکړی چې همدا دتنازع اصلي زړی جوړوي.

که له سولې نه تعبیر دا واخیستل شي چې طالب دې وسله پرځمکه کیږدي رادې شي په حکومت کې به برخه ورکړل شي نه به یې څوک نیسي نه به وژل کیږي اونه به یې څوک کور بمباروي، یوغلط تصور دی، ځکه دطالب مدعا دا نه ده اوله بده مرغه دایقین موهم پوخ دی چې تضمین به یې هم څوک ورنه کړی شي.

که طالب سوله دابولي چې زه څه وایم هغسې به کیږي داهم نه څوک ورسره نه منلی نه شي اونه وخت داسې دی چې همداسې دې وشي، رامنځته شوی تغیراوتحول یوحقیقت دی چې باید ومنل شي.

یوسولې ته ژمنتیا اوبل دسولې له نوم نه استفاده کول دي، هغوی چې مقام، جاه، جلال، دنیا، عیش اوعشرت یې دجنګ په دوام کې خوندي وي هیڅکله سولې ته ژمن نه دی، له دې نامه څخه یواځې دمتاع په ډول کار اخلي اوله ملامتیا څخه پرې ظاهراً ځان خلاصوي اوپه دې نامه یې ښې ښې! رتبې هم ترلاسه کړې!!

که سولې ته واقعي نظروکړو وبه ګورو چې طالب دسولې هغه اړخ دی چې امریکا، ناټو، دافغانستان حکومت او دناټو غړي هیوادونه ټول نه شي کولای په افغانستان کې ددوی حضور اورامنځته کړی شورش یې ختم کړي، که دغه قوتونه ووایي چې طالب خو هم خپل مقصد ته نه شي رسېدلای او دوی یې مخه ډب کړې، خو مونږ وینو چې دوی یې هم په کرار نه شي ترې خوړلای اوپه هیڅ خوندي ځای کې خوندیتوب حتمي نه دی٥ نو په کار ده چې دطالب په مدعا فکر وشي اوسوله ددې مدعا سره په تعامل رامنځته شي.




**طالب څه وايي او څه غواړي؟!**

یوځـه چـې بایـد مـونږ ټـول ورته متوجـه شـو داده مخکـې لـه دې چې دطالـب مـدعا ځانتـه ښـه معلومـه کړومونږپـه هغـو ټـاپو او تبلیغاتو پسې بې شعوره ځـو چـې زمـونږ ددې ټـول اوږده انقـلاب او ناخوالو اساس او بنیـاد دی، طالـب وايـي پـه هیـواد یرغـل شـوی دافغانستان اصولي نظام له منځـه وړل شوی، اوپه هیـواد دبهرنیـانو تسلط اوحاکمیـت دی، ترڅو چې هغوی له قیـد اوشرط پرتـه نـه وي وتـلي زمـونږ دجګړې مجوز څوک نه شي ماتولای او زمونږ جګړه دآزادۍ جګړه ده، د بهرنیانو لـه قیـد اوشرط پرتـه وتلو وروسـته مـونږ افغانـان پـه خپـل منځ کـې سره جوړېـدلای شـو یـا جوړېږو...

ډېرې لوري مخکې لـه دې چـې پـه دې خبـرو فکـر او سوچ وکړي، سمدستي غبرګون ښيي اودسولې مخالفت کوي چې " نه! طالب دای ایس ای ایجنټ دی چې هرڅنګه کیږي جګړه دې ورسره وشي... "

کـه پـه همـدې مـدعا فکـر وشي او یوداسې طرز العمل جوړ شي چې پـه رښاکې یـې دغـه مـدعا پـه نظرکـې ونیـول شي، ایـا ممکن نه ده چې تر ناکامې اونامعلومې جګړې به په دې ډول په ښه توګه د " ای ایس ای" مخـه ونیـول شي؟؟! اوپـه هیـواد کـې بـه رښتینې سوله رامنځته شي؟!!

کـه همداسـې وي، نـو پـه کـار ده چـې پرهیـواد راغلـو بهرنـی قـواوو پـه تېـره امریکایـانو سره دهیـواد دامـن او سـلامتیا خبره سپینه شي او ورته وویل شي چې نـور دلته نه غواړو په مجهولو او د ناتمام تعریـف په شعار داجګړه اوږده کړو چې خپـل هیـواد دتباهۍ کندې ته ور ټېل وهو، مونږ هـم غـواړو دیـو آزاد ملت په حیث هوسا او مترقي ژوندوکړو.

داخـو هـم نـه شي کېدای چـې دامریکایـانو پـه زور راغلـی حکومـت دې لـه طالبـانو سره خـبرې وکـړي او امریکایان دې پکې څوک ونه غږوي، دلته دطالبـانو خبـره رښتیا هم په ځای ده چې که خبره کیږي نو له امریکایانو سره دې مخامخ وشي، هغوی دی چې په هیواد کې دروان کړکیچ اصلي موضوع ده او دهیـواد پـه هـره برخـه هـره ګړۍ دبرید او بمبار کامل اختیار ورسره دی.



# الخندق په افغانستان

## د اشغالګرو وروستی خندق کېږي

حسن مومند

دغاصبو امریکایانو او دامریکا دنورو غربي اتحادیانو دتجاوز په مقابل کې دخپل دین،ځان،عزت او خاورې نه ددفاع په موخه په افغانستان کې مقدس جهاد له تېرو ۱۷ کلونو راهیسې جاري دی او خوشبختانه چې له هرې ورځې نه بلې ته قوي کېږي.

دا چې دتجاوزګرو غاصبو لښکرو مشري دامریکا په نوم هغه زبرځواک کوي چې په اقتصادي ډګر کې یې په نړۍ کې سیال نشته او نه یې دجنګي عصري او پرمختللو وسایلو سره دچاپر مختللي وسایل مقایسه کېدای شي نوهیچا هم دا نه منله چې داسبابو پدې نړۍ کې به غریب او دعصري جنګي وسایلو نه محروم افغانان به په عادي وسلو او وسایلو دامریکا مقابلې ته دیوځوورځولپاره په ډګرکې ودرېږي جنګ ته دومره طول ورکول خو بیخي دچاپه تصورکې هم نه راتلو.

دجنګ ترشا که مادي اهداف وای نودخپل اوسني طاقت سل چنده مادي طاقت که افغانانودرلودای بیا هم دې جنګ ته دومره طول ممکن نه شوګڼل کېدای خو ددې جنګ ترشا چې معنوي عالي اهداف وو او خبره ددیني احساس؛ شرعي فریضې وه او دالله تعالی پرذات اعتماد و نو هغه څه ممکن شول چې ناممکن ګڼل کېدل.

دنړۍ ددې ترټولو ستر زبرځواک او بې مثله طاقت پرضد جنګ یقیناً چې ډېر ګران و؛دسرونو ډېره ستره قرباني یې وغوښتله خو چې دالله تعالی درضا لپاره و او دالله تعالی حکم پوره کېدلو نو راته اسان شو .

او چې اهداف مو حاصلیږي ؛ جنګ سره ستر فتوحات مل دي او دښمن مو ملاماتونکي ګوزارونه خوري نو همدا جنګ زموږ او دټولې نړۍ لپاره له ځان سره دخوشالۍ اسباب هم لري.

دنړیوالو غاصبو قوتونو پرضد زموږ دا جنګ ددفاع جنګ دی؛ زموږ پرهېواد چې غربي تجاوزګرو یرغل کړی موږ ددې یرغلګرو نه دخپل دین، ځان، خاورې، عزت او شرعي نظام ددفاع جنګ کوو .

خو زموږ ددفاع ددې جنګ عملي ډګر ته چې وکتل شي نو اوس موږ په ټول افغانستان کې اقدام کوو او دښمن مو ددفاع په کمزوري پوزیشن کې دی.

هغه وخت اوس ډېر پخوا تللی دی چې دښمن به مو دمارانو،ښامارانو او نورو حیواناتو په نوم زموږ پرضد عملیات اعلانول .

اوس دنوي پلان، نوي احساس،نوي ولولې، نـوي عـزم او نویـو امیـدونو سره دهـر پسـرلي په رارسېدو دافغانستان اسلامي امارت ددښمن پرضد په نوي مبـارک نـوم عملیات اعلانوي چې ددښمن پرضد په ډېر عالي مورال ټـول کـال روان او پـه الهـي نصرت دامیدونو نه هم ډېر زیات بریالي وي.

دافغانستان داسلامي امـارت لـه لـورې دالخنـدق پـه نـوم اعـلان شـوي نـوي پسرلني عملیات دهمدې مبارکې لړۍ دامیدونو نه ډکه هغه تازه کـړۍ ده چې ان شاءالله تعالی دغزوه خندق په څېر به دا هـم دډېـر لـرې مسافت نـه زمـوږ پسـې دراغلي حمله کونکي دښمن دداسې ستري ماتې او شرمېدلې تېښتې سبب شي چې افغانستان خو لرې خبره ده بیا به دې ټولې سیمې تـه هـم پـه کـږو سـترګو دکتلـو غلطي ونکړي.

دا له شکه وتلې ده چې پدې جنـګ کـې اشـغالګرو صـلیبي ځواکونـو تـه سـتر ځاني مالي تاوانونه وراوښتي او وراوړي خو دا چې دجنګ ډګـر زمـوږ وطـن دی نـو قتل عام هم زموږ روان دی او دصلیبیانو دشتون او دجنګ ددوام سره تـړلي خـو را ستر مادي او معنوي تاوانونه هم همدا موږ ته رارسېږي نـو ځکـه زمـوږ دښـمن تـه دځاني او مالي تلفاتو دخوښۍ په پرتله زمـوږ ولـس تـه دجنـګ دذکـر شـوو سـترو تاوانونو غم او درد ډېر ستر دی .

دملګرو ملتونو اداره او ټولـه نړیوالـه ټولنـه بایـد دا ومنـي او کـه پـه زمینـي حقایقو داعتراف کولو جرأت پکې وي نو بایـد پـدې حقیقـت اعـتراف وکـړي چـې پرخپلې خاورې جنګ روان ساتل نه زموږ په زړه پورې مشـغله ده او نـه هـم طبعـي خواهش بلکې دا مو ضرورت او داسې مجبوریت دی چې له دې پرته هـیڅ چـاره نـه لرو او نه هم دښمن بله کومه لار راپرېښې ده.

تاسې وګورئ!دهېواد یوه لویه برخه مو لاهم دغاصبو قوتونو ترقبضې لانـدې ده؛دین ځان او مال مو لاهم ددښمن دشر او ضرر نه ندی خونـدي؛ پـه کورونـو مـو چاپې نورې هم زیاتې شویدي او ښه پـه پراښـه پیمانـه مـو د چـادر او چـاردیوارۍ حرمت پامالېږي؛ددښمن په عقوبت خانو کې مو په زرونو وطنوال ددښمن دسختو تعذیبونو لاندې دي؛داشغالګرو صلیبي دښمن فوځي اډې شتون لـري او دافغانـانو پرضد پـه روان وحشـت کـې دلازیـاتوالي راوسـتلو لپـاره دې اډو تـه نورفوځیـان او عصري جنګي وسایل راوړل کېږي ؛ دعامو خلکو دکورونـو بمبـارول روان دي بلکـې دټرمپ دجنګي ستراتېژۍ داعلان نه پـس پکـې ښـه زیـاتوالی راغلـی دی او زمـوږ علماء ددیني علومو طالبان جوماتونه او مدرسې اوس پـه ښـه پـلان او پروګـرام پـه

نښه کېـږي چـې پـه قنـدوس کـې د دوره حـدیث او حفـظ نـه دنویـو فارغېـدونکو طالبانولپاره پرجوړې شوې غونډې بانـدې بمبارۍ تازه روښانه بېلګه ده.

چې پکې په ډېرې بې رحمۍ په سونو معصوم طالبان او عـام خلـک شـهیدان او ټپیان شول.

نو نړیوال دې پخپله قضـاوت وکـړي چې دامریکا ددې وحشت دمخنیوي لپاره دداسې عملیاتو پرته بـل څـه پـه لاس کـې لرو؟

امریکا په افغانستان کې وحشت هـم روان ساتي او دخلکو دپام اړولو او په خپل وحشت دپـردو اچولـو ناکـامې هڅـې هـم کوي؛دمذاکراتو ډنډوره هـم غـږوي او پـه عمل کې دسولې او مذاکراتو ټول امکانات هم سبوتاژ کوي او داسلامي امارت دجنګ ودرولو معقول موقف تـه پـه مسلسـل ډول منفي جواب وایې.

نړیواله ټولنه او دملګرو ملتونـو اداره بایـد دجـرأت نـه کـار واخلـي او دامریکـا دفسـاد او منافقـت نـه ډک سیاسـت پـه مقابـل کـې پـه اتفـاق پرحـق ولاړ معقـول دریځ غوره کړي.

موږ خپل سپیڅلی مقاومت دامریکـا دوحشتونو دمخنیوي یواځنۍ کامیابـه لار ګڼو او امیـد لـرو چـې دالخنـدق پـه نـوم اوسني اعلان شوي عملیات بـه افغانسـتان امریکا دټول غرور ددفن وروسـتی خنـدق وګرځوي او ټوله سیمه به یې دشر نـه دتـل لپاره مصئونه شي.



# د روان برحق جهاد مغرضو منتقدينو ته ځوابونه!!

ړومبی برخه
مفتي محمد سعيد افغان

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمدلله وحده والصلوة والسلام على من لانبی بعده!

امابعد! که چیرې کافردمسلمانانوپه کوم هیوادیرغل وکړي نوجهادفرض کیږي، اوداخبره له قران کریم اونبوي احادیثوڅخه روښانه ثابته ده اوفقهاء کرامویې تشریح کړې ده چې دکفارولهٔ پلوه پرکوم اسلامي هیواد دیرغل په صورت کې یوازې دهغه هیوادپرمسلمانانو جهادنه فرض کیږي بلکې دنړۍ پرګردومسلمانانوباندې په جهادکې برخه اخیستل فرض ګرځیږي.

که چیرې دامریکادیرغل په صورت کې هرمسلمان برابره خبره ده چې هغه افغان وي اوکه غیرافغان وي چې له یرغلګروکفاروسره مرسته وکړي یاهغوی ته جاسوسي وکړي نودهغوی په خلاف هم دجهادکولوهمداسې حکم دی لکه څرنګه چې اسلام دبهرني جارح یعنې تیري کوونکي په اړه کړی دی اوهغه واجب القتل دی. دموجوده حکومت صفت کول یاخلک ورته خوشبین کول یاداویل چې دغه ملک آبادوي جایزدی که نه؟

الفتوی دکابل ددغه موجوده امریکایي رژیم سره هرقسم کومک کول که یې صفت کول وي که خلک ورته خوشبینول وي یادخلکواوددوی په مابین کې رابطه جوړول وي دغه ټول غیرجایزاونارواکارونه دي، دغه خلک چې دغسې عملونه کوي دالله تعالی ددغه قول لاندې دي: ولاترکنواالی الذین ظلموافتمسکم النارومالکم من دون الله من أولیاء ثم لاتنصرون، (سورة هود۱۱۳) ددغه آیت مطلوب دادی چې دظالمانوطرف ته میل کول په هره طریقه چې وي هغه سبب اوذریعه دتباهي اودالله تعالی دعذاب ګرزي حصوصاً چې دهغوتحسین بیانوي،

امام اوزاعي رحمه الله فرمايلي دي: چې دالله تعالی بل هیڅوک زیات بدنه ایشي سوادهغه عالم نه چې دخپلې دنیوي فایدې په خاطردیوظالم سره دملاقات کولوپاره ځي. (ص۱۴۸ پاره ۱۲).

دافسوس خبره داده چې اوس ډیرپه نامه علماء دکفارودخبرواودهغودتبلیغاتو ترویج کوي، اویا نورداسې مشران مخورخلک وي په مجالسوکې دکفارواوظالمانو داعمالو اواقوالو اواحوالو تحسین بیانوي، نوبایدعام مسلمانان که نروي اوښځې وي دخپلوځبوحفاظت وکړي اوداسلام اومسلمانانوپرضدیې استعمال نه کړي خصوصاً په نامه علماء اونورمشران خلک. زه له دغوعالمانودرې پوښتنې کووم.

۱ـ دافغانستان مومن ملت داوسني ګوډاګي اولاس پوڅي حکومت په نظام کې څه شی محفوظ دي، ددوی مال، ددو خویندې، میندې، لوڼه اومیرمنې اوکه ددوی ځانونه؟

۲ـ آیاپه اوسني حکومت کې دافغانستان دمومن ملت دین او عقیده، معبدونه اوجوماتونه، دیني مدرسې اوکورونه محفوظ دي؟

۳ـ آیاد افغانستان مومن ملت په اوسني حکومت کې دبیان دازادۍ حق لري، چې دیرغلګروصلیبي وحشیانواودهغوی له پلوه ګومارل شویوسیکولرواوکمونستوواکمنتانودظلم په خلاف اوازاوچت کړي، اوکه احیاناًڅوک غږهم پورته کړي آیافریادیې اوردیدل شوی دی اودهغه له ګریوان څخه دظالم لاس لنډکړی شوی دی؟ دپورتنیوګردوپوښتنوځوابونه منفي دي.

محترمولوستونکو! په ۲۰۰۱م کال کې دستامبرپه ۱۱مه دامریکاپه نیویارک اوواشنګټن کې له خونړۍ پیښې څخه

وروسته پړه په اسلامي نړۍ وتپل شوه اوګرداسلامي امت ترورېستۍ وګرځولی شو. ګرده صليبي نړۍ مسلمانانوته دومره په غصه شوه، چې دامريکاواکمن جارج واکربش په زغرده داسلامي امت په خلاف کروسيډواريعنې صليبي جنګ اعلان کړ. بودايانو، هندوانواوکمونيستانويي ملاتړ وکړاوداسلامي امت په خلاف له صليبيانوسره هر ډول بشري، جنګي اومادي مرستې کوي. اروپايي صليبي نړۍ يې هم ملاتړوکړاودمسلمانانوپه خلاف شپږم صليبي جنګ پيل کړای شو، چې اوس هم دوام لري. دامريکاواکمن دخپل نوي صليبي جنګ له اعلان سره سره دسي، ائی، اې رئيس پورټرګوس ته هم هدايت وکړ، چې دسي، ائی، اې جاسوسي سازمان دمسلمانانوپه خلاف زيات فعال کړي اوپه دې هکله نوي اغيزمن اقدامات وکړي، څوداسلامي امت په خلاف نوی صليبي جنګ دکاميابۍ هدف من پړاوته ورسولی شي. نوهماغه وچې د۲۰۰۱م کال داکتوبردمياشتې په اوومه د۱۳۸۰ ش کال دميزان دمياشتې له پينځلسمې نيټې اود۱۴۲۲هـ کال درجب دمياشتې په ۲۱مه نيټه دشپې په نهه نيموبجوامريکايي استعمارپرافغانستان باندې صليبي نظامي يرغل وکړاوپه همدغه شپه يې ترسهاره پورې دافغانستان لوی لوی ښارونه بمباري کړل، اوپه ټولولويوښارونوکې يې بريښناکوټونه، هوائي ډګرونه، داسلامي امارت عسکري سلاکوټونه اودکابل دشريعت غږراډيوسټيشن په نښه کړل، عسکري اوملي الوتکې اوپه زرګونومحاربوي موټرې، درنې اوسپکې وسلې يې توري ايرې وګرځول اوزموږدمسلمان اومجاهدملت په زرګونووګړي يې شهيدان کړل، په زرګونويې ټپيان کړل اوپه لکونويې هجرت کولوته اړايستل، په زرګونوکورونه، کلي، ښارونه، روغتونونه، ديني مدرسې، ښوونځي، ليسې اوجوماتونه يې په کلسټربمونو، کروزاوهاک تورهبري شويوتوغنديوويجاړکړل، اوداسلام اوبشردښمنه صليبي يرغلګرښکيلاک دجنايتونولړۍ تراوسه جاري ده. زموږ پردين، خپلواکۍ اوازادۍ مېن په زرګونوهيوادوال يې په هيوادکې دننه اوله هيوادڅخه بهر پخپلو جوړوکړيو امپرياليستي تورو محبسونوکې بنديان کړل اوبنديانوي يې. زموږ پرهيواد ددغه يرغل اوزموږ دوژلواوبندي کولويوازينی سبب دادی، چې موږ پرخپل دين، استقلال اوازادي مين مسلمانان فقط، اودافغان ميړني ولس دتاريخ په اوږدوکې لکه چې نورو کفري يرغلګرواستعمارګرانوته سرونه ټيټ کړي نه دي، دغه راز دامريکايرغلګرصليبي استعمارته هم خپل ازادسرونه هيڅکله هم نه ښکته کوي اونه به يې ښکته کړي.

دامريکاسفاکويرغلګرووحشي فوځونو زموږ په ګران هيواد افغانستان کې داسې عام قتلونه اوتخريب له پيل څخه وکړ، چې هيڅ استثناء ورېکې نه وه اودمعصوموافغانانوداسې عامه وژنه يې وکړه اوکوي يې، چې نارينه، ښځينه، زوړ، ځوان اوماشوم يويې هم معاف نه کړ، امريکايانويواځې په لومړيو ۸۰ورځوکې (۵۹۷۵۱) عام وګړي اوطالبان شهيدان کړيدي. ددوی الوتکواوسمندري توغنديوپه لومړيواتياورځوکې (۲۱) جوماتونه شهيدان کړيدي. (۱۳۷) روغتونونه، (۱۴) ديني مدرسې، (۱۱٦) ښوونځي، (٦۷) کلي، (۵) هوايي ډګرونه، (۱۷) ښلډينګونه او (۱۹) الوتکې تباه اوويجاړې کړي دي. په يوه مياشت کې امريکايي جنګي الوتکوپه مجموعي توګه لږترلږه درې زره دوه سوه يوويشت (۳۲۲۱) الوتنې دبمونوغورځولوپاره کړې وې. دغو الوتکوزموږپه ګران هيواد کې له (۵۰۰) پونډيزتر (۱۵۰۰۰) پونډيزډيزي کټربمونوپورې استعمال کړيدي. په ټولوکې سترېم يې داکتوبرپه نهمه دکندهاردميوندپرولسوالۍ باندې وغورځاوه. دکابل په شمال کې يې دطالبانودجنګ په اول خط باندې يې داوبړن کيمياوي غازپنځه سوه کيلوګرامه بم وغورځاووچې په چاودلوسره يې دمهلک آوازپه وجه دسلګونو مجاهدينو دغوږونوپردې وشليدلې اوشهيدان شول. زموږپه ګران هيواد افغانستان کې چې امريکايي صليبي ښکيلاکي فوځونو کوم جنايتونه کړي او کوي يې، دومره زيات دی چې دټولوبيان مشکل دی، خو د افسوس ځای دادی چې دکتورصاحب ظريفي په دې ټولو جناياتو سترګې پټوي اوبيامجاهدينوطالبانوته نصيحت کوي چې امريکايانواوددوی له مدافعينوسره جهادپريږدۍ. والی الله المشتکی من سوء حالهم.

امريکااوناټوپه ۲۰۰۱م کال کې په افغانستان فوځي تجاوزوکړ، ذخايراومعادن يې چورکړه، دافغان ملت دکافرکيدولپاره يې بې حسابه کليساوې جوړې کړي، په لکهاووزاړه اوواړه يې قتل کړه. دزرو، زاريواوتزويراوزورپه ذريعه يې ډيرافغانان يې له دين

نه اړولي دي، قران مجيديې وسوځاوه. نوخلاصه خبره داده چې کوم وخت کفارپه يوه اسلامي مملکت تجاوزوکړي، دهغه ملک په نراوښځه، حراوغلام جهادفرض دی. لاندې معتمدکتابونه دې وکتل شي. ۱ــ هداية ج ۲۳۷/۲مخ. کنزالدقائق ۱۹۹. قاضی خان ۴ج/۴۵۹. المحيط البرهانی ج ۲۹۵/۵سراجيه علی هامش قاضيخان ج۳۸۴/۲. تاتارخانيه ۵ج/۲۲۱. مجمع الانهرج۴۰۷/۲. فتح القدير۵ج۱۹۱. عالمگيري ج۱۸۸/۲.

ځيني خلک دااعتراض کوي چې طالبانوبايداسامه بن لادن امريکاته سپارلی وای. زه پ ځواب کې وايم. اولاً: اميرالمومنين ملامحمدعمرمجاهدرحمه الله څخه چې کله اسامه بن لادن وغوښتل شونوارواښادااميرالمومنين دافغانستان له گوټ گوټ څخه وتلي اوپیاوړي شپږسوه ديني علماءکابل ته وغوښتل اوبيا يې دعالمانودې جرگې ته ليک وليږه په هغه کې يې دافغانستان اوامريکاترمنځ دنوې لانجې دحل لاره دشريعت په رڼاکې ولټوي اواسلامي امارت ته په اړونده کشاله کې خپله متفقه فتواورکړي، دغوشپږسووعلماؤدگردواړخونوپه علمي اوديني توگه له څېړنوڅخه وروسته د۱۴۲۲ه کال درجب المرجب دمياشتې په ۳مه نيټه اوږدپريکړه ليک صادرکړچې يوه فقره يې داوه: دعلماء کرامودغه ستره شوری اسلامي امارت ته سپارښتنه کوي چې اسامه بن لادن تشويق کړي ترڅوپه ممکنه وخت کې پخپله خوښه له افغانستان څخه ووزي اودځان لپاره کوم بل ځای انتخاب کړي. دافغانستان دجسوروعلماؤپه ذکرشوي پريکړه ليک کې اتل مجاهداسامه بن لادن تقبله الله ته واک ورکړی شوی دی چې پخپله خوښه له افغانستان څخه بل هيوادته وووزي چې په همدغه وجه اسلامي امارت نشوای کولی اونه يې کول چې خپل قدرمن ميلمه دکفارودسترگواغزی دافغانستان څخه په زوروباسي. که بالفرض مرحوم ملاصاحب رحمه الله داسامه پريکړه په خپل سرکړې وای نوبيابه دې له نوموړي داگيله کړې وه، داچې له شپږسووڅخه زياتومتدينوشيوخواوعالمانوچې دهيوادله گوټ گوټ څخه يې راټول کړي ؤاوواک ورکړل شوی ؤ، فيصله وکړه، نوخبره داده چې دخوږ پيغمبرعليه السلام امت په گمراهي نه راټوليږي. بله داچې شايد په دغوعالمانوکې که ټول نه وي زياتره به يې ترمااوتاغښتلي عالمان وي، ځکه چې دټول هيوادپه سطحه شخصيتونه ؤ. اوهمدارنگه د امريکايانو غوښتنه دشيخ اسامه رحمه الله په هکله په دريووجوغيرقانونی غوښتنه وه.

اول داچه: شريعت مطهره دااجازه نه ورکوي چه يو مسلمان دي کافرانو ظالمانو ته حواله کړي البته سيدنا رسول کريم صلی الله عليه وسلم دصلح حديبيه په موقعه ابوجندل رضی الله تعالی مکی کفاروته دمعاهدي په وجه ورکړی وه اوکله چه ابوجندل رضی الله تعالی دوهم ځلی دکفاروڅخه خلاص شو اودبحرساحل ته راغی هلته يي دمظلوم مسلمان مرکز تهيه کړو بيا رسول کريم صلی الله عليه وسلم ديته مجبورنه کړ چه کفاروته واپس ورشي ځکه چه دغه معاهدي سرليک لاندي داخل نه وه لهذا داسلامی امارت اوامريکايانو ترمنځ په دي ارتباط کوم تړون نه وه موجودچه شرعا يی شيخ اسامه رحمه الله امريکايانو ته حواله کړی وای.

دوهم دا چه: بين المللی قوانين هم دانه ايجاب وي چه شيخ اسامه رحمه الله ئی امريکايانو ته حواله کړی وه ځکه امريکايانو اسلامی امارت په رسميت نه پيژندنو دبين المللي موادوله مخی ديوچاغوښتنه سياستا هغه څوک کولی شی چی هغه په رسميت وپيژني لهذاد امريکايانو دغه غوښتنه دبين المللي قوانينوهم خلاف وه.

دريم دا چه: افغاني عنانات ددی اجازه نه ورکوی چه يومظلوم يو سيمی ياقوم اوکلی کی پناه واخلي بيا ئي ظالمانوته حواله کړي دافغانانو په تاريخ کی ددی مثل نه شته چه يومظلوم دي ظالمانو ته ورکړی شوي وی. لهذا اسلامي امارت دافغانانو امارت وه دوي نه غوښتل چه افغاني تاريخ باندی دشيخ اسامه رحمه الله ورکول يو داغ شي.

اوبله خوا افغانان يو اسلا می ملت ده په هره مغضله کی دملت جيد علماء کرامو ته مراجعه کوی نو اسلامي امارت هم پدی حقله دملت جيد علماء کرامو څخه فتوی وغوښته نو دملت جيدو علماء کراموداشيخ اسامه رحمه الله په نه ورکول فتوی ورکړ ه نو اسلامي امارت په هغه فتوی عمل و کړ.

څلورم دا چه: امريکايانو تراوسه پوري داثبوت نری ته وړاندی نه کړ چه دستمبر په پيښه کی دشيخ أسامه رحمه الله لاس ؤ پخپله شيخ أسامه رحمه الله فرمايلی وه چه داپيښه مورنه

ده کړی البته ورباندي خوشحاله یو لهذا امریکایانو پدي پلمه خپل شخصی اهداف ترلاس کول غوښتل.

پنځم دا چه: د امریکی صدربوش هغه وخت کی خپل ملت امریکایانو ته دروژی نیولواوکلیسوته ددعاګانو لپاره دتللو امرکړی وه اوورته یې ویلی ؤو چه دغه یو صلیبی جګړه ده لهذا امریکایانو پخپله اعتراف وکړ چه دغه جګړه داسلام اومسلمانانو خلاف یو مذهبي صلیبی جنګ ده نوداسامه غوښتل داوبوخړول ؤ، دا ځکه چه ددی ترځنګ ئي دسیکولرزم حکومت غوښتنه هم کوله اوبل دا چه دامریکایانو دحملی په وخت کی شیخ اسامه رحمه الله تعالی د اسلامي امارت په کنټرول منطقو کی وجودنه درلود، لهذ ا نه شرعاً اونه قانوناً اونه سیاسةً دشیخ اسامه ورکول په کارؤاوهم داکارله افغاني عنعناتوځخه خلاف ؤ. الله تعالی ددې خبر ورکړی دی چې یهود اونصاری له مسلمانانو سره په یوه دوامداره جګړه بوخت دي، مونږ يې مثالونه هر وخت او د نړي په ګوټ ګوټ کې وینوچې دا د مسلمانانو او کافرو پرګنو تر منځ جګړه ده مګر د اسلام دښمنان ډیر هوښیار او چالاک دي، په چل اوفریب سره دي جګړې ته په مطبوعاتوکي ډول ډول نومونه ورکوي کله وايي دااقتصادي جنګ دی کله وايي داسیاسي جنګ دی او کله وايي دا یوقومي جنګ دی، دوی د مسلمانانوعکس العمل ځخه د ډار له امله په ډانګ پېیلی او په زغرده نشي. ویلی چې دا د اسلام او یهودیت اوعیسویت ترمنځ مذهبي جنګ دی.

ځینې خلک وایي: چې د روسانوسره د جهاد او د امریکاپرضدمبارزه زیات توپیرلري اووایي چې اوسنی جهادفتنه دی: زه ددې خلکوپه ځواب کې وایم: - اوسني جهادته فتنه ویل عظیمه اشتباه ده اودوی ته په کاردي چې توبه وباسي اوبیاله سرنه کلمه ووایي. آیاداسلامي امارت مجاهدین داحق نلري چې دخپلې خاورې اوناموس دفاع وکړي؟ بله خبره داچې له اسلامي امارت سره دهیوادزیاتره مشایخ اوباعمله عالمان ملګري دي، په کم تعدادنام نهادعالمان یې مخالفین دي چې هغوی هم دخپلوماديانوترلاسه کولولپاره له حق نه سترګې پټوي، آیادادومره جمع غفیردعالمانوپه ناحقه دي اوداکم تعدادکسان په حق دي؟ زه داپوښتنه کووم چې آيا دافغانستان په موجوده نظام کې به یوځوک په ډاګه دحق خبره وکړای شي؟ آیاپه موجوده نظام کې که ولس یوچاته رایه ورکړي په ایمان یې وواېه چې دامریکاخوښه نه وي دلته به څوک دوه ورځې په خلکوپاچاهي وکړی شي؟ داخوښکاره خبره ده چې امریکاپه افغانستان تېری وکړاویوشرعي نظام یې له منځه یووړ. په داسې حال کې چې یوشرعي حکومت دکافرانوپه لاس ړنګ شي اوبیاهغه کافران بل حکومت قایم کړي، نودغه دکافرانوپه لاس جوړشوی حکومت اسلامي کیدلای شي؟ دغه موجوده به اسلامي حکومت وي اوکه هغه مخکینی حکومت چې شرعي نظام یې نافذکړی ؤاوحدودیې قایم کړی ؤ؟ روسانوچې څوک راوستي ؤاوپرموږیې مسلط ګرځولي ؤ، که چېرې موږ دهغوی دنظام سره مقابله نه وی کړې اوجهادموورسره نه وی اعلان کړی، نوبیاخوروسانوهم موږسره جنګ نه کاوه اونه موږهجرت ته مجبورکیدو، بلکه موږ ټولوبه په همدې هیوادکې ژوندکاوه، خودیوکفري نظام په سیوري کې به اوسیدو. البته نن عام افغانان صلیبي یرغلګر خپل دوستان اوخواخوږي بولي اوروسان محاربین اودښمنان ګني. رسول الله صلی الله علیه وسلم کافران ټول یوملت بللي دي. امریکی اشغال روسی اشغال ته ورته والی لری البته روسی اشغال کمونیزم او اشتراکی نظریه تطبیق کول غوښتل او امریکی اشغال دیکتاتوریزم او دیموکراسي نظریه پیلی کول غواړي. لهذا په اوسني اقتصادي او سیاسي نړۍ کې یې ښه مثالونه کمونیزم، امپرالیزم، دیکتاتوریزم او دیموکراسي ده. ددې نظامونو پیروان هڅه کوي چې ددې نظامونو مفهوم کې له اسلام سره ورته والی ثابت کړي د دوی هدف دادی چې مسلمانان په یوخطرناک جال کې راګیراوداسلامي نظام په ځای بل نظام ورته وړاندې کړي. دوی تل هڅه کړې او وايي چې ځینو مواردو کې اسلام زمونږ پلوي او ملګری دی.

د همدې تېرایستنو په جریان کې د اشتراکي نظام پیروان کوښښ کوي د کپیټالیزم له حملواو مرګوني ګذارونو ځخه د اسلام تر شاه ځان پټ کړي، دوی داسلام دجګړې لومړی کرښې ته د راوړاندي کولو لپاره دا دلیل وایي: چې اسلام په شخصي ازادۍ باور لري، همدا راز د کار او تجارت په برخه کې یې انسان ته ازادي ورکړې، د دوی تر منځ يې، په سالمه توګه د مال په ترلاسه کولو کې د مقابلې دروازه پرانستې ده.



د اشتراکې نظام او کپیټالیزم تر منځ د پیښېدونکو شخړو او جګړو تـاو بـه حـتما پـه اسـلامي هیوادونو کې اسلام او مسلمانانوته رسیږي.

سره له دې چې اسلام له دوی څخه د یوه ملاتړهم نـه کـوي، کـه چیرې لـه دوی څخـه هـر یوبریـالی شي؛ اسلام ته یې خیر نشته. که چیرې دوی د خپلې جګړې په میدان کې اسلامي نظام تـه ځـاي ورکـړي نـو مالومـه خبره ده چې دواړو ته به خپلې غلطۍ ور پـه ګوتـه کـړي او سمې لارې ته به یې رهبري کړي. ځوک چې اسلام په اشتراکي نظام، په کپیټالیزم، دیکتاتوریزم او یا اسلام په دیموکراسۍ کې نغاړي دوی په حقیقت کې داسلام یـودرواغجن انځور خلکوتـه وړانـدې کوي. اسلام داسې نه دی لکه دوی چې فکرکړی بلکـه اسـلام یـو ځانګړی بې مثاله نظام دی.

د اسلام پورتـه مسخه شوي انځورونـو څخه ځینـي وخت خلک یو څه مفـاهیم ر اخـلي چې د لـوی مصیبت، بـې لاریـو او غلطیـو سـبب کیـږي، نـو پـه ټولـو مسلمانانو لازمـه ده چې ددې دسیسـو پـه وړانـدې ویښ او بیـدار وي، او ددښمن هـر ګـذار او کمین ته متوجه وي. بې شکه چې د اسلام لـه دښـمنانو سره پـه هغه څه کې مرسته او کومک کـول، چې اسلام او مسلمانانو تـه ورکې ضرر وي؛ له الله تعالی، قران کریم، رسـول اللـه صلـی اللـه علیه وسلم او عامو مسلمانانو سره لـوی خیانـت دی، ځکـه قـران کـریم او نبـوي احادیـث ټـول پـه دې بانـدی دلالـت کـوي، چې مسلمانانو سره دوستي او له کافرانو سره دښمني د اسلام له ثابتو اصولو څخه یو اصل دی. له دې پرتـه د هیڅـا اسلام صـحیح نـه دی، ځـوک چې لـه دې سره مخـالف وي، هغـه پـه حقیقـت کې داسلام له ثابتو اصولو څخه انکارکوی، چې لـه مسلمانانو سره دوستي واجب اوله کافرانو سره دوستي حرام ده.

آیادتورصلیبي کپیټالیستي نړۍ خورطاغوتي استعمار اوسور کمونستي استعمار دیرغل ترمنځ کـوم توپیرشته؟ هغـه ظلمونـه، چې روسانو پر افغانانو کـول صلیبي یرغلګرهغـوی پـه پرتلـه پـه ځوچنــــده نــــه کــــوي؟ آیاصـــــلیبي یرغلګرپـــــه بـــــاګرام، ګوانتانامواونورونـدانوکې پـه اسـلام اوآزادۍ مـین مسـلمانان لـه روسانوڅخه کم تعذیبوي؛ بلکې له هغوی څخـه یـې، چې دروس دکولیماپه کمپونوکې یې زمـوږ مسلمان هیـوادوال تعـذیبول زیـات تعذیبوي. آیاهغوی بمباري کولـه دوی صـلیبي یرغلګـران یـې نـه کوي؟ آیاهغوی پـه یرغـل سره افغانسـتان دارالحـرب اومسـتعمره ؤاو د دوی پـه یرغل کې مستعمره نـه دی؟ ددغوګردوپوښتنوځواب نـه لرې. پـه همدې اسـاس پـه اوسـني یرغـل کې هـم افغانسـتان مسـتعمره دی او ظالمانـه نظـام حـاکم دی اودافغانسـتان دآزادۍ اودصلیبیانو د شړلو لپاره داوسني نظام سقوط داسې فـرض دی؛ لکه دروسانو د یرغل په موده کې، چې دکمونستي نظام سـقوط فرض ؤ.

بله خبره داده چې دیوهیـواد پـه دارالاسلام کیـدوکې اصـل اهمیت په دې خبره کې دی چې پردوی باندې دمسلمانانو بشپړه تسلط شـته اوکـه یـه؟ کـه بشـپړه تسـلط وي؛ نـو دې هیوادتـه دارالاسلام ویل کیږي اود دارالاسلام احکام به پرې جاري کیـږي که څه هم دمسلمانو چاروا کودسستي له امله هلته بشپړ شریعـت نه وي نافذشوی.

دغـه راز یـو هیـواد دارالحـرب یـادارالکفر شـمیرلو کـې هـم بنستیزه خبره داده چې دکـافرانو پـه ولکـه کـې وي اوهلتـه ددوی حکـم پـلي کیـږي. جامع الرمـوز دالکـافي پـه حوالـه د دارالحـرب تعریـف داسـې کـوي: (ودار الحـرب مـایجري فیـه أمـر رئـیس الکافرین) یعنـی دارالحـرب هغـې ځمکـې تـه وایـي چې دکـافرانو دمشرحکم پرې پلي کیږي تر دې چې کـه پریـوه سیمه دکـافرانو بشپړه ولکه وي اوهغوی دخپل حکم سره سم مسلمانانو ته دخپلـو شعائرو اومحکمو جوړولو اجازه ورکـړي؛ نوبیـا هـم هغـه دارالحـرب شمیرل کیـږي، یـوازې ددې اجـازې لـه املـه دارالاسـلام نـه شـې ګرځیـدلای، ځکـه چـې بشـپړ واک دکـافرانو پـه لاس کـې دی اوهغوی چې هروخت وغواړي دا اجازه بیرته اخیستلی شي.



# دا خلک ولې امریکایان غواړي؟

نعمان لطیف

زموږ یو کلیوال ؤ که به چا په ټوکه ورته وویل ادې دې مړه شوه، ده به په رښتیا وژړل. یوه ورځ مو وپوښت ته په ټوکه ولې ژاړې؟

وایي پوهېږم چې ټوکه ده خو تر شاه یې حقیقت پروت دی او ژړا له همدې راځي چې یوه ورځ به حتماً دا ټوکه رښتیا کیږي او ادې به مړه کیږي.

هغه خلک چې د امریکا حضور کې خپلې ګټېویني یقیني دي چې ادې یوه ورځ حتماً مري او یرغلګر به سپېره مخونه دا خاوره ایله کوي.

د افغانستان پېچلې جګړې او دطالبانو غیر متؤقع مقاؤمت امریکایان وارخطا کړی دی او هره شېبه دا تؤقع شته چې سپېره مخونه له افغانستانه کډې بار کړي.

د افغانستان په اړه دټرمپ دریځ له پیله متزلزل دی. تر انتخاباتو وړاندې یې له افغانستانه دپوځیانو په ویستلو ټینګار کاوه خو تر انتخاباتو ګټلو وروسته یې دبُش پر پل، پل کېښود.

د افغانستان په زېر بناء خوندي ذخائرو یې سترګې ونښتې او په دې امید یې وحشیانه جګړئیزه ستراتېژي اعلان کړه چې ګواکې جګړئیز مصارف به دهمدې ذخائرو په ترلاسه کؤلو پوره کاندي.

دټرمپ زړه جګړې ته نه ؤ، له جګړې تېر برېښېده او په افغانستان کې پیل کړې جګړه یې په امریکایي ملت بې ګټې او بېځایه اقتصادي بوج باله.

کټ مټ دواشنګټن پوسټ دوروستۍ مقالې په څېر، دټرمپ نظر هم ؤ او هغه دا چې افغانستان دیوه امریکایي پوځي دهډوکو هومره ارزښت نلري خو ټرمپ هغو امریکایي او افغاني چارؤاکو او جنرالانو خطا باسه چې افغان جګړه کې یې ګټې دي؛ اوس څکه هره شېبه له دوی سره دا اندېښنه شته وي چې هسې نه کومه ورځ د ادې دمړینې ټوکه رښتیا شي.

وروستي وحشتونه، ړانده بمبارونه او په عامه ځایونو کې چاودنې، داعش ته دبریدونو مؤاقع برابرؤل او دطالبانو په نوم دطالبانو دکمزوري ښودلو لپاره سنګوریان او .... جوړؤل ددې لپاره دي چې ټرمپ ته یو څه ډاډ ورکړي چې ګواکې طالبانو مو پاشلي او تیت پرک او وارخطا کړي دي.

د افغانستان دمعادنو لاندې کؤلو لپاره داعش او نمایشي سنګوریان دطالبانو خلاف دجګړې میدان ته راوویستی شوه

ترڅو ددوی له خوا په ولسي وګړو دسختو مظالمو له امله طالبان او جهاد منفور کړي او په همدې توګه په غرئيزو سيمو کې دطالبانو واک او ځواک هم کم کړي او په اسانه ډول خوندي زير بناء معادنو ته لاس رسی ومومي خو اوس ولس له دې سازشونه سره اشنا شوی دی چې ورسره دغه سازشونه هم منزوی ښکاري.

دوی ولې دلته امريکايان غواړي؟ دهمدې لپاره چې له جګړې ګټې لری او دجګړې له لارې رزق پيدا کوي.

ددې لپاره چې دروانې جګړې دمشروعيت اړوند عامه اذهان تحريف کړي او دجګړي اور بل وساتي، لسګونه پانې يې جوړې کړي او لسګونه قلمؤال يې کرايه کړي دي. ترڅو دطالب دمشروع مقاؤمت په اړه نړيؤال او ولسي ذهنيت ګنده کړي او دسولې دروازې قلف کړي.

دماليې پخواني وزير ډاکټر صيب عمر زاخيلؤال پارلمان کې په جار نعرې وکړې چې يو وکيل ترې درايې بدل کې ميليونه پيسې غواړي.

همدا خلک د امريکايانو دپاته کېدا لپاره رنګارنګ وژونکې پروژې په لاره اچؤي او هر هغه بړغ خپ کؤي چې د امريکايانو په ضد پورته کيږي.

د امريکايانو له برکته په خارجي بانکونو او ملکونو کې پربمانه شتمنۍ او پراخ کاروبارونه لري، له خارجي ممالکو فقط غونډو ته راځي او اولادونه يې هماڵته هوسا او سوکاله ژوندون لري.

که امريکايان ووځي، جګړه ودرېږي او سوله وشي ددوی هر څه په تپه درېږي، ځکه نه غواړي امريکايان ووځي او هېؤاد ته ثبات اعاده شي.

دناخؤالو عامل يرغلګر دي او له ناخؤالو وتل ديرغلګرو تر وتلو منحصر دي؛ هغه خلک چې په يؤه او بله پلمه ديرغلګرو د وتلو مخنيوی کؤي او يا رانډ پال ته دټرمپ خبرې يې اودسونه مات کړي دي، ددې هېؤاد او هېؤادوالو دبدبختيو عاملين دي.

دوی بايد خبر وي چې يؤه ورځ به حتماً يرغلګر تښتي او دوی به خړ مخونه لکه دکمونستانو، د ولس محکمې ته پاته کيږي خو خدای دې وکړي چې تېر تاريخ تکرار نشي او له يرغلګرو را پاته ابزار او افراد يو مخ د ولس محکمې ته وسپارل شي.

# ﺛلوړ حديثونه

## او_ﺛلوړ_اخلاقي_مهارتونه:

**ﺛلور حديثونه چې ﺛلور اخلاقي مهارتونو په ساتلو کې درسره مرسته کوي.**

**اول مهارت درسول الله عليه السلام په دې قول کې دی: څوک چې په الله او دآخرت په ورځ (قيامت) ايمان لري، نو دخير خبره دې وکړي يا دې غلی شي. بخاري، مسلم، ابو داود، ترمذي، احمد.**

**(دژبې دساتلو مهارت)**

**دوهم مهارت درسول الله صلی الله عليه وسلم په دې قول کې دی: دسړي دښه اسلام نښه داده چې هغه څه پريږدي چې ده پورې اړه نه لري. ترمذي، ابن ماجه، موطأ مالك، احمد.**

**(دبې ګټې کارونو نه دځان ساتلو مهارت)**

**دريم مهارت: کله چې يو نفر نبي عليه الصلاة والسلام ته وويل چې نصيحت راته وکړه، هغه ورته وفرمايل: مه په غصه کيږه، او څو ځله يې ورته په تکرار وفرمايل: مه په غصه کيږه. بخاري، ترمذي، موطأ مالك، احمد.**

**(دنفس په واک کې لرلو مهارت)**

**ﺛلورم مهارت درسول الله صلی الله عليه وسلم په دې قول کې دی: يو له تاسو نه به هيڅکله کامل مؤمن نه شي ترڅو چې دبل مؤمن ورور لپاره هغه څه خوښ نه کړي چې دخپل ځان لپاره يې خوښه وي. بخاري، ترمذي، نسائي، دارمي أحمد.**

**(دزړه دصفا والي او پاکوالي مهارت)**

**دا ﺛلور حديثونه دکامياب او نيکپال شخصيت دژوند مهم اړخونه رانغاړي.**

- ✓ **دځان اصلاح کول.**
- ✓ **دباور جوړول.**
- ✓ **همدارنګه دخپل ځان پيژندل او عزتمند لرل.**

**دنورو سره دتعامل چل زده کول او دنفسي مشکلاتو نه ځان ساتل.**

# دلیل ناکامی روند ثبت نام؛

حبیبی سمنگانی

## بی باوری مردم بر رژیم



روند ثبت نام رای دهندگان برای انتخابات پارلمانی و شوراهای ولسوالی ها به تاریخ ۱۴ اپریل رسما از سوی اشرف غنی آغاز شد، اشرف غنی و عبدالله در همان روز اول به گونهء نمایشی ثبت نام کردند و مردم را به سهم گیری درین پروسهء انتخاباتی دعوت دادند، اما روند ثبت نام با وصف همه تلاشهای رژیم و تبلیغات و هیاهوی رسانه های حامی رژیم رونق نگرفت و نه تنها نهادهای ناظر و رسانه های داخلی و خارجی حرف از ناکامی این پروسه می زنند بلکه مقامات خورد و بزرگ رژیم نیز اعتراف بر عدم تمایل مردم به این روند دارند، ناکامی این روند برگذاری و حیثیت انتخابات پارلمانی و شوراهای ولسوالی ها در ماه اکتوبر سال جاری را به شدت خدشه دار ساخته است.

رسانه ها به نقل از کمیسیون انتخابات خبر دادند که در هفتهء اول ۱۸۹ هزار نفر در سراسر کشور ثبت نام کردند و آمار ثبت نام کنندگان در دو و نیم هفته به ۶۰۰ هزار نفر رسید (در حالیکه باید هر هفته بالا تر از یک و نیم ملیون نفر ثبت نام می کردند، زیرا شمار واجدان شرایط دهی در کشور سیزده الی چهارده ملیون نفر تخمین شده است و زمان مقرره برای ثبت نام دو ماه یعنی هشت هفته مقرر شده است)، اما سران رژیم به جای اینکه به اعتراضات و ملحوظات مردم در قبال پروسهء انتخابات پاسخ بگویند و برای مردم در مورد برگذاری انتخابات شفاف و منصفانه اطمینان بدهند، به پنهان داشتن آمار ثبت نام کنندگان پرداختند، اشرف غنی در یک نشست ویدیویی به کارمندان کمیسیون انتخابات دستور داد که آمار ثبت نام شدگان در اختیار مردم قرار نگیرد، این کار اشرف غنی بی اعتمادی مردم به پروسهء انتخابات را بیشتر ساخت، چنانکه یکی از کارشناسان سیاسی می گوید: «اگر آمارهای روزمره پنهان شود، مثل انتخابات ۲۰۱۴ آماری که از ساعت چهار تا ساعت هشت چهار میلیون تغییر کرد، ضمانتی وجود ندارد که این بار نیز در پایان روند یک آمار خیالی بیرون داده نشود».

از همینست که کمیسیون انتخابات (در هفتهء سوم) ادعا نمود که ۶۵۰ هزار نفر ثبت نام کرده اند، اما بسیاری هابه همین آمار هم باور ندارند، زیرا تا روز هژدهم بانک اطلاعات که آمار ثبت نام شدگان دران درج می گردد اصلاً وجود

نداشت و هرگاه بانک اطلاعات (یا دیتابیس) ساخته شد نهاد های ناظر بر چگونگی درج آمارهای ثبت نام شدگان اظهار بی اعتمادی کردند، زیرا آن ها می گویند هیچ چیزی در بارهء بانک اطلاعاتی کمیسیون انتخابات نمی‌دانند و تا کنون برای ناظران نشان داده نشده است که آمار در دیتابیس چگونه ثبت می شود، اما کمیسیون انتخابات چنانکه می کوشد واقعیت ها را از مردم و رسانه ها پنهان دارد، در قبال نهادهای ناظر نیز آماده نیست که آن ها را در مورد کیفیت جمع آوری آمار ثبت نام شدگان مطمئن بسازد، بلی، تنها توصیه می کند که آمارها درست و شفاف ثبت می‌شود، شما هیچ نگرانی نداشته باشید.

حالا باید ببینیم وضعیت روند ثبت نام از نگاه رسانه های حامی رژیم (نه طالبان و مردم عامه) چگونه پیش می رود، تا بدانیم رژیم و کمیسیون انتخابات چرا برای پنهان داشتن آمار ثبت نام شدگان تلاش می کنند، خبرهای که در مورد روند ثبت نام به نشر می رسد ازین قرار است:

۱ ثور، در حالی که حدود یک هفته از آغاز روند ثبت نام رای دهندگان در کشورمان آغاز شده است اما حضور کمرنگ مردم در مراکز ثبت نام نگرانی مقامات و رهبران سیاسی کشور را برانگیخته است، عطامحمد نور (والی پیشین بلخ) اظهار داشت: مردم افغانستان به برگزاری انتخابات شفاف و عادلانه در زمان تعین شده آن از سوی کمسیون انتخابات اطمینان ندارند، وی در ادامه تصریح کرد: با وجود گذشت یک هفته تنها ۳۵۰۰ نفر در ولایت بلخ به مراکز ثبت نام رای دهندگان مراجعه کرده‌اند که این موضوع نگران کننده است (آریانا نیوز).

۹ ثور، دفتر کمیسیون انتخابات در ولایت غزنی از سه روز بدین سو بسته است، کمیسیون مستقل انتخابات، تأیید می‌کند که دفتر ولایتی این کمیسیون در ولایت غزنی از سه روز به این سو در نتیجهء اعتراض شماری از باشنده گان این ولایت بسته شده است، در غزنی روزانه به گونهء میانگین سه تن در مرکزهای ثبت نام های رای دهندگان ثبت نام می کنند (طلوع نیوز).

۹ ثور، نگرانی از بی‌میلی مردم به ثبت نام برای انتخاباتی که قرار است اکتوبر امسال برگزار شود در سطوح رسمی ظاهرا همه را غافل‌گیر ساخته. اقدامات اخیر حکومت وحدت ملی مثل درخواست از والی‌ها برای ثبت نام کارمندهای دولت و خانواده‌یشان، نشان می‌دهد تدابیری برای چنین روزی در دست نبوده چون نهادهای رسمی انتظارش را نداشته‌اند (بی بی سی).

قابل ذکر است که مقاطعهء مردم یگانه تهدید برای برگذاری انتخابات پیش رو نیست، بلکه تهدید بزرگ تری که حکایت از ناتوانی رژیم برای برگذاری یک انتخابات سراسری می کند کاهش روز افزون ساحهء زیر کنترول رژیم است، رژیم کابل نه تنها در چند سال اخیر بخش اعظم ساحات زیر کنترول خود را از دست داده است بلکه روند عقب نشینی نیروهای رژیم هنوز هم متوقف نشده است، بی بی سی در یکی از راپورهای اخیر خود که حاصل تحقیق چند ماهه بود خبر داد که ۷۰ در صد مناطق افغانستان تحت کنترول و یا حضور گستردهء طالبان قرار دارد، در حالیکه با آغاز موسم جنگی و عملیات تابستانی الخندق یقینا ساحهء نفوذ طالبان دیگر هم افزایش می یابد، چنانکه برای همگان هویدا است طالبان پروسهء‌کنونی انتخابات را همچون انتخابات های گذشته جعلی، نمایشی و دستوری خوانده است و مردم را به جای مشارکت درین پروسه به تلاش برای آزادی کشور از پنجه های خون آشام اشغال فراخوانده است، درین شکی نیست که یکی از عوامل عمدهء فاصله گیری مردم از روند ثبت نام در حقیقت تائید موقف شرعی، قانونی و منطقی طالبان است.

مردم (بالفرض و المحال) اگر آمادهء رای دهی شوند باز هم رژیم تنها همین قدر توانایی دارد که در بست یا سی در صد خاک کشور (که در کنترول دارد) مراکز رای دهی باز بکند و زمینهء برگذاری انتخابات را مساعد بکند، اما واقعیت اینست که وکلاء و نمایندگان پارلمان به آراء افغان ها انتخاب نمی شوند، بلکه سند کامیابی شان را پیش از پیش از آدرس های دیگری که اکنون بر ملت نیز مخفی نیست به دست می آورند، هر چه اینکه آقایان و سرپرستان رژیم چگونه این پروسه را کامیاب جلوه می دهند برای آن ها کار مشکلی نیست و آن ها در بخش خاک پاشیدن بر چشم های مردم و جهان استعداد، امکانات و تجربهء کافی دارند.



# خبریالانو! قاتل مو د ع او غ تر لمن لاندي دی

▪ تمیم توفیق

ابله ورځ په کابل کې د داعشي وسلوالو په برید کې د نورو بې ګناه ولسي وګړو تر څنګ ۹ تنو خبریالانو هم ژوند له لاسه ورکړ، چې د نورو پېښو په څېر ډېرې افغانانو پرې خپه او ډېر بیا پرې خوشحاله و، خو دغه پېښه د نړۍ په کچه ځکه وغندل شوه چې خبریالان یو بې ازاره مخلوق یادېږي او وژل یې د رسنیو د زندۍ کولو په معنی دی.

باور دی چې د بي بي سي خوستی ژورنالست احمدشاه د کمپاین او امریکایي ملیشو لخوا وژل شوی؛ ځکه نوموړي یې د ملکي تلفاتو په اړه راپور ورکړی و او د دوی ظلمونه یې افشا کړي وو، خو کابل کې د دوشنبې په ورځ وژل شوي خبریالان د چا لخوا ووژل شول؟ راځئ دلته یو شک څرګند کړو، چې یقین ته ډېر نژدې دی.

واقعیت دا دی چې خبریالانو ته ځوک په ډاګه ځکه برګ نشي کتلی چې بیا یې په رسنیو کې په بد نوم یادوي او ډېر ژر یې رنګ بدوي، له دې امله د خبریالانو مرګونه په مرموز ډول ترسره کېږي، خو لکه څنګه چې هیڅ ناحقه مرګ پټ نشي پاتې کېدلی، دغه راز د خبریال مرموزه وژنه هم ځینو شکمنو ثبوتونو ته په کتلو لوڅېدلی شي. کابل کې د وژل شویو خبریالانو قاتل هم څو شواهدو په بنا په ګوته کولی شو.

کله چې کابل کې یاده پېښه رامنځته شوه، د ټولنیزو رسنیو ځینو فعالانو ولیکل چې دې پېښه کې د کابل دولت لاس دی؛ ځکه چې د شش درک (د کابل زړه) په څېر محفوظه او په پوستو محصوره سیمه کې دوه پرلپسې چاونې کېدل، هغه هم په داسې خاص وخت کې چې تر بل هر وخت یې زیات امنیتي ملحوظات په نظر کې نیول شوي وي، ناممکن کار دی.

دا یو لړلید و چې واضح شو، خو اوس نژدې یقیني شوه چې دغه پېښه د کابل حکومت لخوا پخپله ترسره شوې ده، دا چې حکومت به یې په انجامولو کومه ګټه په نظر کې نیولې وه، تر او سه یې په اړه څه نه ویل کېږي.

داخله وزارت د پېښې په اړه ویلي چې دښمن مو د ځینو خلاګانو څخه په استفاده دغه عمل ترسره کړی. اجرائیه رئیس عبدالله هم تېره ورځ د وزیرانو په شورا کې د یادې پېښې په اړه خبرو کې په امنیتي ځواکونو غږ وکړ چې دوی ډېر څه کړیو خو باید نوره توجه هم زیاته کړي، تر څو له د ورته پېښو مخنیوی وشي.

حکومتي چارواکې په داسې حال کې د امنیتي خلا په یادولو سره د پېښې له مسؤلیته ځان باسي چې په یاده سیمه کې ۱۴ پوستې موجودې دي، چې عسکریې د لارویانو سخته تالاشي کوي. حتی نن ورځ یو خبر نشر شو چې وایي کابل ښاریان د پوستو له ډېرښته او تالاشیو تنګ راغلي دي.

مور له ډېر وخت راهیسې د حکومتي چارواکو تر منځه د ژورو اختلافاتو خبرونه اورو، چې آن ځینې خو یې د یو بل په کورونو هم ورختلي دي او د یو بل پلویان/ساتونکي/ملګري یې وژلي او ډبولي دي.

د اختلافاتو دغه دلایل مو ډاډمنوي چې ووایو، د دوشنبې د ورځې چاودنې خپله د حکومتي چارواکو لخوا د نورو په ضد ترسره شوې دي، چې ضمناً پکې خبریالانو هم ژوند له لاسه ورکړ.

ځینې ژورنالستان هم د چارواکو انډیوالان او همکاران دي، چې له نورو سره یې توپیري چلند کله نا کله د فزیکي برخورد لامل جوړیږي، د یادې پېښې اړوند هم ویلی شو چې ممکن د خپلمنځي اختلافاتو له کبله مخامخ خبریالان هدف ګرځول شوي وي.

له دې علاوه مو د ملي امنیت د پخواني رئیس رحمت الله نبیل خبره پوره یقین ته رسوي چې پېښه د حکومت کار وبولو. نبیل تیره ورځ د طلوع نیوز یوې خبریالې ته ویلي چې (کله چې د ملي امنیت رئیس وم، حکومت په رسمي توګه له دې ارګان څخه وغوښتل چې د داعش ډلې د ځواکمن او قوي ښوودلو لپاره کار وکړم.)

له دې وړاندې هم ځینو چارواکو او د ولسي جرګې غړو په ډاګه کړې چې حکومت او امریکایان په هیواد کې د داعش ډلې شتون ته د رسنیو له لارې هوا ورکوي، مالي مرسته یې کوي او وسلې ورته رسوي. د شمال ختیز او لویدیځ اوسیدونکو خو په ځلونو هغه چورلکې لیدلې چې داعش وسلوال انتقالوي او مهمات ورته ښکته کوي.

د نبیل، نورو چارواکو او ولس له خبرو یقیني کیږو چې داعش ډله اوس هم د امریکایانو او حکومت له بشپړ ملاتړ څخه برخمنه ده، چې د دې په سر کې د حکومت د ملي امنیت اداره قرار لري.

چې داسې ده نو بیا هم په پوره اطمنان سره ویلی شو چې د دوشنبې د ورځې مرګوني چاونې، چې داعش یې پړه ومنله، د ملي امنیت اداري د ځینو مهالنیو ګټو د ترلاسه کولو په هدف ترسره کړې دي.

نو حاصل د خبرې دا چې د ژورنالستانو د نی اداره باید د حکومت (اشرف غني او عبدالله) او په ځانګړې ډول د حنیف اتمر ګریوان ته لاس واچوي او د خپلو ملګرو قاتلین ترې وغواړي، ګني همداسې به وژل کیږي، سپکیږي او ورکیږي.

## کومه نیکي به دې جنت ته داخل کړي..؟

له طنطاوي رحمه الله څخه د یو حکمت په اړه پوښتنه وشوه، چې ده په خپل ژوند کې لوستلی وي. نوموړي وویل:

له اویا کلونو څخه مې زیات لوستل وکړل، خو له هغه پرته مې ستر حکمت ونه موندی، کوم چې ابن جوزي رحمه الله رانقل کړی دی او لیکي:

" د طاعت او بندګۍ سختي ځي او ثواب یې پاتیږي.. د ګناهونو خوند ځي او سزا یې پاتیږي... د الله تعالی د دین حمایت کوه او د هیچا پروا مه کوه او د شپې په تیارو کې د هغه دربار ته لاسونه اوچت کړه او ووایه چې پروردګاره ! دنیا ستا په ذکر او یاد ښکلې ده او آخرت به مو ستا په عفوه ښکلی کیږي.. جنت ستا له دیدار پرته هیڅ دی.. د خلګو سره په ورین تندي مخامخ کېږه او د هغوی له خطاګانو څخه تېر شه.. مخلوق خپل رب ته پرېږده، ځکه چې ته او هغوی ټول له دې نړۍ کوچېدونکي یاست.. د خیر کار چې هر څومره کوچنی وي، کوه یې ځکه ته نه پوهېږې چې کومه نیکي به دې جنت ته داخل کړي. "



لیکنه: نقیب الله (احمدي)

# د دوو جهادونو قاید محمدي تګلاره ونه پېژندله!

پوهنتون کې زموږ یو استاد وو، هغه به تل په درس کې ډېر په زړه پورې او ژوندي مثالونه ورکول. یوه ورځ په دې بحث راغی چې هر مسلمان باید د ځان لپاره نبوي منهج وټاکي، ټول ژوند یې په اسلامي اصولو سمبال او مزین وي، ځکه تر هغه هیڅ مؤمن د الله جل جلاله ولایت ته نشي رسیدای، ترڅو یې چې فعل په سنتو نه وي برابر؛ نو هغه خپل د سترګو لیدلی حال داسې بیانوي:

زه د ماسترۍ دورې لپاره عربستان سعودي ته ولاړم، ښه په خوند او مزه مې خپل تحصیلات پرمخ وړل، هلته زموږ قدر او عزت د نورو هېوادو په پرتله په کراتو ډېر وو، دا ځکه چې موږ (افغانانو) د جهاد اتلان بلل کیدو، هر افغان ته د مجاهد په سترګه کتل کیدل.

وختونه وو تېرېدل، یوه ورځ آوازه شوه چې نن شپه د افغانستان یو جهادي مشر راځي او خپلو محصلینو ته وینا کوي، د خبرتیا لپاره پوسټر (اعلان) وځړېدو چې نن شپه 8: 00 بجې زموږ جهادي مشر (سیاف) راځي. هر چا ټاکلي وخت ته انتظار ایستلو، ورځ تېره شوه، اته بجې پوره شوې او غونډه پیل شوه.

خو حیرانونکې خبره دا ده چې زموږ استاد ویل: چې زموږ استادانو ځانونه دومره لوړ ګڼل چې د خپل هېواد (عربستان) پادشاه ته هم نه کیناستل خو دې غونډې ته راغلي وو، افغاني مشر په وینا پیل وکړ، پرله پسې یې د افغانانو دردونکې کیسې وکړلې، خپل شهیدان او یتیمان یې یادول، خپل یوازیتوب یې ښکاره کاوه، څو شېبې همداسې لګیا وو، سترې شو او حلق یې وچ شو، اوبه ورته په کار وې؛ خو کاشکي دا اوبه نه وای څښلې، ځکه موږ ته به د ابد لپاره پېغور نه وای جوړ شوی، خو بدبختانه د نبي علیه السلام خلاف یې په چپ لاس اوبه راپورته او وڅښلې.

زموږ استاد زیاته کړه: د دې عمل په لیدو سره زموږ ټول استادان له مجلس څخه ووتل، موږ هم ترې د وتلو لامل وپښتلو، هغوی زیاته کړه:

د یوه هېواد جهادي مشر چې د خپل ژوندانه چارې د محمدي تګلارې خلاف پرمخ وړي هغه به څنګه د مسلمه امت د درد لپاره دوا شي، هغه به څنګه خپل رعیت وژغوري؟

اوس هم د حکمتیار صیب پایڅو ته ګورئ، ساعت ته یې ګورئ، لکه هیڅ چې په اسلامي ارزښتونو پوه نه وي، لکه چې د خپل سر د امن په خاطر یې هر څه هېر کړل، ته به وایې چې همدا اوس په اسلام کې داخل شوی وي، ولې دې ضمیر ویده شو، ولې ولې!؟

هې هې دین به هغه وخت دین شي چې کابل د ګلبدین شي؛ خو زه وایم چې:

نه یې دین، دین شو او نه کابل د ګلبدین شو!




# طالبان مات شول که زیات شول؟



لیکوال: عاکف امارتی

ښه مې په یاد دي چې مونږ ماشومان وو او مکتب ته په لاره روان وو یو ملګری وویل چې مسعود چا په بم الوزولی او وژلی یې دی مونږ مسعود تش په نامه پیژانده خو دومره خبر وو چې ها زمونږ دکلي ملا امام هغه دفلاني مدرسي طالب د مسعود لخوا په شهادت ورسیدل نو ځکه مو له مسعود نه ذهنا کرکه کیدله او په مرګ یې خوشحاله و.

له هغه ورسته لاهم زمونږ دماشومتوب دوران وو اوازې به مو اوریدلې چې امریکایان پر افغانستان حمله کوي خو کمه موده ورسته همداسې وشول .

دافغانستان زمکه او فضا دامریکایانو لخوا اشغال شول پر اسمان داسې طیارې تاویدلې چې تا به ویل چې دټولې نړۍ نه یې همدلته راټولې کړې دي

پر هیواد دظلم او وحشت څادر خور شو مدرسې بمار شولې علماء او طالبان یاله خپل وطن نه مهاجر شول او یاهم دظلم او وحشت په زنځیرو وتړل شول

هغه دالله ج قول راته یاد شو (ماکان الله لیذر المؤمنین حتی یمیز الخبیث من الطیب)همداسې وخت وو هغه چې دپخواني جهاد پر وخت کې یې د الله جل جلاله رضا مطلب نه وه او د پیسو او قدرت لپاره جنګیدل دلته هم دخپلو شومو اهدافو لپاره داشغالګرو تر څنګ ودریدل

کومو کسانو چې دامریکایانو مخالفت کاوه هغوی دکلیو اوښارونو ژوند ترک کړی وو او یاهم هره شیبه دمرګ او زندان په انتظار وو

ولسي قصاوتګرو عناصرو ته دټوپک پورته کولو موقع په لاس ورغلله علماء او طالب العلمان هر ځای زیات ځورول

کیدل ددین مدرسی دپخوانیو جنګ سالارانو لخوا تحت التصرف شولی طالبان یی ترینه وشړل او خپل غونډونه یی پکی ځای پر ځای کړل.

په کلیوالو سیمو کی ښځو دآزادی او دموکراسی نعری وهلی او دسر پړونی یی وغورځول غلا وی. دچرسیانو او مفسدو عناصر تحرکات دکوکنارو کرکیله. دساز او سرود مجالس او داسی نور غیر اسلامی کارونه رائج شول

لنډه داچی په هیواد کی خلک برلا عسویت ته جلب کیدل او ژوندی مثال یی عبدالرحمن پنجشیری وو

پر دی وخت کی الله جل جلاله یو ځل بیا مجاهدو طالبانو ته دحرکت او خوځښت توان ورپه نصیب کړلو او سرونه راپورته کړل، دنړی داسلامی او غیر اسلامی دولتونو خو اول اوورسته دا عقیده وه چی که له امریکا سره څوک پر مقابل کی دریږی نو دابه ددوی یوه لویه اشتباه او تحور وی

آن ځینی ضعیف الایمان تش په نامه ملا یانو به راته دا آیت کریمه هم استدلال گزولو چی(ولاتلقو بایدیکم الی التهلکة)خو دالله ج اراده داسی نه وه لکه نړی چی انگیرله، دمدرسو طالبان او استاذان به د ډانګ(اوږد لرګي)سره دشپی گرزیدل او دمفسیدینو دکورونو په دروازو به یی شبنامی لګولی

طالبان له مادی لحاظه دصفر سره برابر وو خو اما ایمانی غرور یی د نیل په شان څپی وهلی او دغرب دخونخوارو په وینو یی دکلونو روژه ماتوله

طالبان چی په لومړیو کی دیو زاړه موټرسیکل او یو میل زنګ وهلی کلاشنکوف او یاهم دشهید پلار دانګریزی ټوپک او برچی چښتنان ول په دیر تکلیف سره وتوانیدل چی داولس په منځ کی ځای پیدا کړی او دخلکو په جلب اوجذب کی پوره کار وکړی.

دطالبانو دراپورته کیدلو سره سم د سفر طاقط لرونکی امریکی عبور او مرور محدود شو دکال په تیریدلو سره دولسوالی له مرکز پرته دټولو ساحو پریښودلو ته مجبور شول او په زیاته پیمانه تلفات یی ولیدل

دادی اوس دامریکا له یرغل نه پوره (۱۷)کاله ووتل هغه چی دوی ویل کوکنار ورک کوو آیا ورک شول؟

هغه چا یی چی په ډالرو او اقتصادی پیاوړتیا اتکاء کړی پکی ریښتینی شول؟

دطالبانو دنست نابود کولو وعدی یی چی دبُن کنفرانس کی وکړلی کرزیه هغه ارمان دی پوره شو؟ نه،

کوکنار دملامحمد عمر دیو فرمان په صادرولو باندی بند شول او دامریکا له یرغل سره بیرته رائج شول

داقتصاد برخه کی امریکا خپله له زیاتو ننګونو سره مخ شو ،هغه متل دی وایی چی چښتن پخپله مرداری خوری نو سپی ته به څه شی ورواچوی دغرب تالی څټو زړونه مو صبر کړی امریکا له مادی صرف نه سفره ده

او طالبان دالله ج لشکر دی دکفر په اشر باندی نه ختمیږی دا لا پیاوړی کیږی دا دی که دزور اوزر خبره وایی باید اوس طالب صرف په نامه پاتی وای ځکه ټولی نړی وباندی یرغل وکړو خو دالله (ج) قول دی(واللہ متم نوره ولو کره الکافرون)

داسلامی امارت لشکر دادی یوه نړیواله بڼه خپله کړی اوس ورسره دټول اسلامی امت ملاتړ دی او په اسیا او افریقا او یو شمیر نورو دولتونو کی هم مسلمانان داسلامی امارت بیرغونه اوچتوی او دهغوی دملاتړ نعری وهي.

***

# بر ښنائي پېژندپاڼې!

## دچا اړتیا او دکومو موخو لپاره؟

رحیمي

نوې ډرامه دبرښنایي تذکرو یا پیژند پاڼو په سر پیل شوې او پکې دغلام رژیم دوه مهم جهتونه (عبد الله او اشرفک) په داسې حال کې سره لاس او ګریوان دي چې دواړوترشاه یو خارجي بادرشتون لري چې یوه ته دپیژندپاڼو دویشلو اشاره کوي او بل یې له اخستلو څخه منع کوي

داستعمارګرو تاریخ په دې شاهد دی چې هغوی تل دخپلو شومو اهدافو لپاره ټولنې او ملتونه سره ویشلي په خپلمنځي جنجالونواو رقابتونو کې ښکېل کړي او بیا تراوړدې مودې پورط یې په هغوی حکومتونه کړي امریکا چې په افغانستان او سیمه کې دیو بلې ډرامې دپیل هوډ لري ورته دغسې جنجالونه رامنځته کول مهم او ارزښت لري او ترې په کلکه پلوي کوي

افغانستان په ماضي کې هیڅکله دقوم، ملت، ژبې اونسل په نومونودومره بدبختۍ او دیوبل څخه دنفرتونو او کرکې کولو ناسورندی لیدلی څومره چې نن کوي، پوښتنه داده چې دا ولې؟ او د ترشاه یې دچا لاس او څوک یې شاه ټپونه کوي؟ ښکاره ده شته ټولې بدمرغۍ زمونږپه هېواد کې دامریکا یئ یرغل دنحوست زیږنده دي نو دامریکا ستراتیژۍ او اجندا داده چې افغانان دقوم، ژبې اونسل په توپیرونو سره وویشي او په دې یې سره وجنګوي څو په منطقه کې ورته هروخت داوبو خړولو او پکې دخپلې خوښې کبانو نیولو چانس په برخه وي.

امریکا چې هر کله هم په کوم هېواد یا خاوره تجاوز کړی لومړی یې هلته میشت قومونه سره دیو بل دښمنان ګرځولي، هغوی یې پخپلو کې سره جنګولې نن هم په افغانستان کې دقومونو او ژبو په سر دافغانانو ترمنځ دنفاق او شقاق اورامریکا بل کړی اوترشاه امریکا لاس لري .

هر افغان چې شعور لري پوهیږي اشرف غني او عبد الله دامریکا ګوډاګیان دي او دوی دواړه دامریکایانو دخوشالولو او دهغوی دګټو دخوندي کولو لپاره دزړه داخلاص نه غلامي کوي او هغه وظایف چې دوی ورته سپاري په ورینوټنډو یې ترسره کوي

نو دقوم، ژبې او نسل په نوم د واحد افغان ملت دویشلو پروسه دواړو ته امریکا سپارلې او په اړه یې هریوه ته جلا، جلا دنده سپارلي، اشرف غني ته یې دویش او عبد الله ته دنه اخستلو مسؤلیت ورکړی او د دې دواړو نه امریکا جلا، جلا غرضونه لري



نن چې په ظاهره د دواړو ترمنځ دتذکرو په سر کوم جنجال رامنځته دی سبب یې دادی چې باداره امریکا هم داسې یو حالت ته ضرورت لري څو دافغانستان دننه میشت قومونه پخپلمنځ کې سره دښمنان شي، آن په یوځای، په یوښار او یوکلي کې داوسیدو باور یې هم ترمنځوپاتې نشي اوپه پای دجلا، جلا هېوادو په غړښتنه منتج شي

دکتونکو په نظر دا دافغانستان دتجزیې په لور لومړی علني گام دی، چې پکې دامریکایانو څخه علاوه ایرانیان هم مخامخ ښکېل دي او اراده لري چې وا حد افغانستان له منځه یوسي او په څو ټوټو او برخو یې وویشي.

دبرقي تذکرو بل ناوړه هدف دادی چې په دې سره امریکایان افغانان دلاسو او پښو دواړو تړل غواړي؛ دوی چې هر وخت هر کله هم وغواړي په یو معمولي شک یو افغان وگړی پیدا کړي ددغې لارې یې په اسانه پیدا کولی شي، یو څوک وغواړي تعقیب یې وې څاري له دې لارې په اسانه سره تعقیب او څارلی شي، په هغو هېوادو کې چې امریکا مستقلې دایمې پوځي هډې لري، هلته امریکایان په معمولي معمولي تشویشونو دهغو هېوادو وگړي نیسي، توقیف خانو کې یې اچوي ورته ډول ډول اذیتونه ورکوي تري پوښتنې او گرویږنې کوي په دې لړ کې ډیر کار دپیېزندپاڼو دډېټا څخه اخلي، په افغانستان کې هم دټولو افغانانو ډېټا به امریکا ته سپارل کېږي، امریکا به دهغې له مخې هرافغان وگړی چې وغواړي پیدا یې کړي په اسانۍ سره به یې پیدا کولی شي اوښکاره ده چې په دغسې موارداو کې که افغانانو ته دامریکا یانو لخوا هرڅومره اذیتونه رسي حتی دامریکایې عسکرو لخوا وژل کېږي هم؛ افغان دولت او خلک تري دپوښتنې حق نلري ځکه ملعون اشرف غني امریکایانو ته قضائي مصؤنیت ورکړی که یو امریکا دلس زره افغانانو په مرگ تورن ثابت شي بیا هغه څوک محاکمه کولی نه شي ولې هغه ته قضایې مصؤنیت حاصل دی، هغه تري په ناړه گڼه پورته کولو سره هرڅومره افغانان چې وژني مجاز دی لنډه داچې اشرف غني یو کرغیړن انسان دی چې هیڅ ورته دافغانستان گټې اولویت نلري یواځې او یواځې دامریکا دگټو دساتنې غلام دی اوپخپل کرغیړن دور کې یې افغانانو ته گڼ پیغورونه وبښل چې تاریخ به یې هیڅکله ونه ښبي نن د برښنیاېې پیژندپاڼو لړۍ یواځې او یواځې ددې لپاره پیل کړي چې دافغانانو ډېټا امریکایانو ته په لاس ورکړي په خاصه توگه دپښتنو ډېټا ترلاسه کولو لپاره امریکا زیاته اړتیا لري ددې لپاره یې پښتنو ته داخستلو لوری ټاکلی او نورو وړوقومونه ته دنه اخستو...

# د مرګونو ځاله:

## د امریکایي بې پیلوټه الوتکو د جګړې په تړاو پټ اسناد

ژباړن: نورالحق حیدر

د مرګونو ځاله؛ د امریکایي بې پیلوټه الوتکو په تړاو د پنټاګون محرم سندونه دي چې د پنټاګون یوه چارواکي»انټرسېپټ «انلاین رسنۍ ته ورکړي دي. د» بلك واټر «شهکار اثر لیکوال» جرمي سکاهیل «او د انټرسېپټ نورو ژورنالیستانو دغه سندونه ارزولي او تحقیقي راپورونه یې پرې لیکلي دي. دغه راپورونه د کتاب په شکل هم چاپ شوي دي. په نړۍ کې د دې کتاب او راپورونو تود هرکلی شوی دی.

دا سندونه د بې پیلوټه الوتکو د بریدونو په تړاو ډېرې ناویلې بې پردې کوي. اوس چې په افغانستان کې د امریکا د پوځي ستراتېژۍ غومبر جوړ دی، بې پیلوټه او نورې الوتکې یې د هېواد کلي او بانډې بمباروي او اردلیان یې دې ستراتېژۍ ته څنې غورځوي؛ نو د دې سندونو لوستل افغانانو ته بې ګټې نه دي.

بې پیلوټه الوتکې یوه وسیله ده، پالیسي نه ده؛ پالیسي یې ترور او وژنې دي. امریکایي ولسمشر جرالډ فورډ د ځانګړي فرمان پر بنسټ د امریکایانو لهخوا پر ترور بندیز لګولی و، تر ده را وروسته ټولو ولسمشرانو دا فرمان منلی دی. خو کانګرس لا تر اوسه تصویب کړی نه دی، آن د «ترور» کلمه یې هم نه ده تعریف کړې. دې خلا د بې پیلوټه الوتکو د جګړو پلویان خلاص مټ پرېښودل چې په نوي نوم وژنې او ترور پیل کړي.

د اوباما ادارې د بې پیلوټه الوتکو د بریدونو په تړاو په عام محضر کې ویل: د جګړې ډګر ته د عسکرو لېږلو ډېر ښه بدیل بې پیلوټه الوتکې دي. دوی ویل، یوازې هغه مهال د بې پیلوټه الوتکو بریدونو ته اجازه ورکوي چې د امریکایانو ژوند ته «جدي ګواښ» وي او موږ تقریباً په دې ډاډه یو چې هدف به په دې برید کې ځپل کېږي. خو دا شرایط له ابهامه ډک دي، د امریکایانو په اوړو کې شګه ده، ځکه د دوی د دې پالیسي او کړنو تر منځ خورا لوی توپیر شته.

د اعلان شویو جګړو له ډګرونو بهر، بې پیلوټه الوتکو کابو ۱۵ کاله ورانډې لا بریدونه کول؛ خو سپینې ماڼۍ د ۲۰۱۳م په مې کې د دې بریدونو لهپاره اصول او کړنلارې اعلان کړې. دا اصول پوره مشخص او روښانه نه دي. په دې اصولو کې ویل شوي چې امریکا به یوازې هغه مهال د اعلان شوې جګړې له ډګرونو بهر برید کوي چې تر هدف لاندې شخص

امریکایي وګړیو ته پر لهپسې جدي ګواښونه پېښ کړي. د دې اصولو له مخې یو کس له قانوني تعقیب او محاکمې پرته باید ووژل شي. د بې پیلوټه الوتکو د بریدونو په تړاو د اوباما د اداري پیغام ښکاره و؛ دوی ډاډه دي، تاییدولو ته اړتیا نشته.

د ۲۰۱۵م د اکتوبر پر ۱۵مه انټرسېپټ د بې پیلوټه الوتکو د بریدونو په تړاو پټ اسناد خپاره کړل. دغه اسناد له ۲۰۱۱ــ ۲۰۱۳ (چې د بې پیلوټه الوتکو په جګړې کې د بدلون مهم وخت دی) د امریکایي پوځ د وژلو/نیولو عملیاتو روڼ انځور وړاندې کوي.

په دې اسنادو کې د ځانګړو عملیاتو ځواکونو د بې پیلوټه الوتکو د پروګرام پر نیمګړتیاوو خولې خلاصې کړې دي. دا اسناد د امریکا د استخباراتو یو کارکوونکي انټرسېپټ ته ورکړي دي. ده پهخپله د همدې عملیاتو او پروګرامونو په جوړولو کې لاس درلود. انټرنسېپټ له دې سرچینې سره منلې ده چې هویت به یې نه افشا کوي؛ ځکه لومړی خو دا اسناد محرم دي او بل دا چې د امریکا حکومت پر افشاګرو زړه نه سوځي او سخته سزا ورکوي. له همدې امله په دې لړۍ کې موږ د ده نوم نه لیکو، یوازې «سرچینه» یې بولو.

سرچینې انټرسېپټ ته ویلي؛ دا اسناد یې ځکه افشا کړي چې عام خلک حق لري پوه شي چې د یوه انسان نوم د وژنې په لېستونو کې څنګه لیکل کېږي او بیا څنګه د لوړ پوړو امریکایي چارواکو په امر ترور کېږي. سرچینه وایي: «په دې ظالمانه ترور او وژنو کې – یو کس ښارل، دوی ته د شمېرې ټاکل، کارټ ورته جوړول، له محاکمې پرته د مرګ سزا ورکول، په داسې یوه جګړه کې چې ټوله نړۍ یې ډګر دی-دا عملیات آن له هماغه پیله غلط روان دي.«

»موږ په دې ګناه کې شریک یو. له موږ نه زما موخه هغه امریکایي وګړي دي چې اوس دې معلوماتو ته لاسرسی لري، خو بیا هم د خیر په غونډۍ ناست دي او د دې ترور او وژنو د مخنیوي لپاره نه لاس په کار کېږي. «

پنټاګون، سپینې ماڼۍ او د ځانګړو عملیاتو قوماندانې ټول په دې تړاو له ویلو ډډه کوي. د پنټاګون یو ویاند وویل: «موږ پر محرمو اسنادو او د هغو پر جزیاتو نظر نه ورکوو. «

سي. آی. اې. او د امریکا د پوځ د ځانګړو عملیاتو ګډه قوماندانې ( Joint Special Operations Command یا JSOC) د بې پیلوټه الوتکو د ترور پروګرام موازي چلوي. له دې اسنادو دا هم معلومېږي چې د ترور او وژنو په دې پروګرام کې ډېر واک له چا سره دی؟ په دې اسنادو کې د دوو سلایډونو موضوع له ۲۰۱۱ – ۲۰۱۳ په یمن او سومالیا کې پر ډېرو مهمو عملیاتو په تېره بیا د ټاسک فورس ۴ – ۴۸ (Task Force 48- 4) په نوم د پټو ځواکونو پر ځېنکو عملیاتو را څرخي.

نور اسناد بیا په افغانستان کې د مهمو اهدافو د نیولو/وژلو عملیاتو اړوند دي. دا اسناد په ډاګه کوي چې د امریکا حکومت د بې پیلوټه الوتکو په بریدونو کې د ملکي وګړو پر مرګ ژوبلې پرده اچوله؛ دوی به هغه کسان چې هویت یې لا معلوم نه و دښمنان بلل، آن که دا کسان به د دوی د برید موخه هم نه وو. دا اسناد په افغانستان کې د بې پیلوټه الوتکو د جګړې یو بل انځور هم وړاندې کوي، هغه دا چې یوازې د القاعدې غړي او طالبان نه په نښه کېدل؛ بلکې د نورو ځایي وسلهوالو ډلو غړي هم ځپي.

په دې اسنادو کې یو سند دا ښيي چې بې پیلوټه الوتکې څنګه عملیات کوي. د دې سند له مخې د بې پیلوټه الوتکو کارکوونکي ځانګړي کوډونه کاروي؛ دا کوډونه د یو کس په سیم کارټ او موبایل پورې اړوند وي، د په نښه شویو کسانو موقعیت له همدې لارې پیدا کېږي.

د دې اسنادو په یوه برخه کې په سومالیا او یمن کې د بې پیلوټه الوتکو په بریدونو کې د شکمنو کسانو د نیولو پر ځای د وژلو استخباراتي زیانونه ښوول شوي دي. دا څېړنه په ۲۰۱۳م کې د امریکا دفاع وزارت د استخباراتو، څار او کشف ریاست ( Intelligence, Surveillance, and Reconnaissance Task Force) کړې ده. د (ISR) څېړنه د بې پیلوټه الوتکو له نیمګړتیاوو پرده پورته کوي، دوی نورې پرمختللې څارګرې الوتکې غوښتې دي او همدارنګه د موخو د ښه څارلو لهپاره یې د پوځي کښتیو د ډېر کار غوښتنه هم کړې ده. دوی دا هم ویلي دي چې نوي هوایي ډګرونه دې جوړ شي، شکمن ترهګر دې وژل نه؛ بلکې ونیول شي

او په دې نويو بډګرونو کې دې ترې پلټنې وشي.

دغه مهال د (ISR) ځواکونو د «ميکايل ويکرس» تر لاس لاندې کار کاوه، دی د پنټاګون استخباراتي معين و. «ويکرس» د بې پيلوټه الوتکو د بريدونو سر سخت پلوی و او له ډېره وخته يې د پوځ په چوکاټ کې د ځانګړو عملياتو د زياتولو لپاره هلې ځلې کړې دي. مهم قانون جوړونکي، (ISR) ته د بې پيلوټه الوتکو په څېر د ځارنې وسايلو د مدافع وکيل په سترګه ګوري.

د پنټاګون په ياده شوې څېړنه کې د برتانوي وګړي «بلال البرجاوي» د قضيې په تړاو نوي معلومات هم راغلي دي. له ده د انګليستان تابعيت اخيستل شوی و او په ۲۰۱۲ کې د امريکا د بې پيلوټه الوتکې په بريد کې ووژل شو. د اسنادو پر بنسټ «البرجاوي» له کلونو راهيسې له انګليستان څخه ختيځې افريقا ته تګ راتګ کاوه او د انګليستان او امريکا استخباراتي ادارو څاره. دې ادارو ژوندی و نه نيو، خو امريکا دی په سوماليا کې په نښه کړ او و يې واژه.

دې اسنادو ته په کتو دې پايلو ته رسېږو چې د واشنګټن له ۲۰۰۱ را وروسته د هدفي وژنو په روانه لړۍ کې ټوله تکيه پر استخباراتي سيګنالونو ده، د ملکي انسانو د مرګ ژوبلې شمېرې پکې نه ويل کېږي او بله دا چې تر نيولو پکې وژلو ته لومړيتوب ورکول کېږي. دا اسناد دا هم ښيي چې په افغانستان کې امريکا په عبث جګړه کې ښکېل ده. د دې اسنادو له مخې امريکا دلته د ځايي ياغيانو پر وژلو پرېمانه لګښتونه کوي، خو دا بريدونه د روانې جګړې پر لمبو تېل پاشي.

دا پټ اسناد د واشنګټن د روانو جګړو يو حکايت دی، د امريکا پوځ همدا اوس په عراق او سوريه کې د داعش پر خلاف د بې پيلوټه الوتکو بريدونه ډېر کړي دي او په دغو هېوادونو کې يې پټې جګړې پيل کړې دي.



د «پيدا کول، سمول او له منځه وړل» نظامي کړنلاره (چې د سپټمبر د يوولسمې له پېښو را وروسته يې له پولو بهر جګړه توده ساتلې) نوی تعريف پيدا کړی او رسمي بڼه يې خپله کړې ده. د بې پيلوټه الوتکو بريدونه، شپنۍ چاپې او نورې هغه تګلارې چې لا تر اوسه پټې پاتې دي، دا جوتېږي چې ترور د تروريزم پر وړاندې جګړې مهمه برخه شوې او امريکايي ادارو ته اوس دا عادي کار ښکاري.

سرچينه وايي: «په پوځ کې (د امريکا) بدلونونه راتلای شي، خو دوی له هغه کاره لاس نه اخلي چې د دوی په ګومان کارونه يې آسانوي او ګټه يې پکې وي. بې پيلوټه الوتکې د جګړې ساده خو اغېزناکه وسيله ده، له دې وسيلې د جګړې هغه ډول تېروتنې هم نه کېږي چې پر عراق او افغانستان کې؛ په ځمکنيو يرغلو کې وشوې. داسې ښکاري چې د امريکا پوځي او استخباراتي ادارې د بې پيلوټه الوتکو په کارولو روږدي شوې دي، له دې وسيلې چې يې راګرځوي نو سخته پرې تمامېږي، دا ځکه چې دوی له اوږدې مودې راهيسې بې پيلوټه الوتکې همدا ډول کاروي.»

# تاته ولې شهید ووایو؟

**لطیف**




دشهید او شهادت دخطاب له شرعي بڼې که تېر شو او یواځې په عام عُرف شهید تفسیر کړو، د اردو عسکرو ته بیا هم شهید نه شو ویلی

عام عرف کې شهید هغه چاته ویل کېږي چې دوطن او وطنوالو لپاره سرونه نذرانه کوي؛ آیا د اردو عسکر دوطن او وطنوالو لپاره سرونه نذرانه کوي که کرایه قاتلان دي؟

درځئ رڼا پرې واچوو؛ دوطن په اړه باید ووایم دتازه شمېرنو په حواله د افغان په خاوره د ۳۹ هېوادونو ۲۱۱۴۶ وسله وال پوځیان مېشت دي. ددوی له جملې څخه یو هم له قانوني لارې نه دی راغلی ددوی هر پوځي اجازه لري د افغانستان په هره برخه کې افغان ووژني او افغان حکومت حق هم نلري چې د ،ولې، او په ،څه، پوښتنه ترې وکړي. یعنې له قانوني جزاء هم مصؤن دي

دوهم گام کې دوطنوالو ساتنه ده؛ جگړه ۱۷ کلنه شوه او دې دوران کې چې دغرب په توپونو او بمباریو څومره افغانان وژل شوي دي، په څه ناڅه وجهه افغان اردو په کې شریکه ده، یا به دبمبار کوردینات دوی ورکړي وي، یا به بدرگه ورسره تللي وي، یا به دعسکرو دټوپک ججورې پرې تشې شوي وي، یا به دوی ورته ؤلاړ او غربي پوځیانو وژلي وي

اسلامي شعائر بمبار شوه، دخدای کتاب قرآن کریم پاڼې پاڼې شو، دخوږ پیغمبر له خوږو ملغلرو ډک کتابونه په مردکیو وویشتل شوه، دمدارسو واړه حافظان په وینو رنگ شوه او سپینې نبوي پگړی په سرو وینو ولړل شوې خو د اردو عساکر چوپ چاپ ناست دي او په لس زره افغانیو یې ایمانونه او وجدانونهانه کړي دي

په وطن مو د۳۹ صلیبي هېوادونو وسله والو پوځیانو یرغل راوړی دی، دگران وطن تمام سرحدات غیر محفوظ دي، سرحد ته څېرمه په مېشتو افغانانو هره ورځ توغندي ورېږي او تاسې له تمثیلي تکاتوک او دزنده باد او مرده له نعرو هاخوا بل هیڅ نشئ کولای او نه دکوُلو ؤاک لرئ، نو تاسې ته څنگه شهیدان ووایو؟

اوس دومره ښکرۇر شوي یاست چې په مدارسو بمبار وشي، سلگونه زده کوُنکي شهیدان شي، بمبار صلیبیان وکړي او په ویاړ سره یې پړه تاسې ومنئ

بیا گیله هم تاسې کوئ چې موږ دوطن او ولس ساتونکی یو خو ملا مو جنازه نه کوي، او ولس مو جنازې ته نه راځي. گرېوان ته سر کښته کړه، پخپله قاضي شه او ځواب راکړه چې دوی په کوم زړه او سترگو ستاسو جنازې ته درشي؟

په ۱۷ کلن جنگ کې مو دوطن هدېرې په افغان ځوانانو دپنجابي په نوم ډکې کړې، ته وخدای دومره پښتانه به پنجاب وژلي وي لکه تا چې ووژل؟ دومره افغانان به انگرېز وژلي وي لکه تا چې د گور میلمانه کړه؟

دویاړونو په ښار کندهار کې مو دوُه ستر کلي لقمان کلا او جهانگیری پاکستان ته ورنکړ؟ تاسې په لومړیو کې دعوې کوُلې او ویل مو چې په اټک او جهلم به د افغانستان بیرغ رپوُم خو پخپل شعار کې دروُاغجن واست. لاره مو چپه کړه او د افغانانو په قصابۍ کې دومره مصروف شواست چې اټک او جهلم خو پاته دي په تورخم کې یې زموږ په خاوره دروازه جوړ کړه، ازغن تار یې دپښتنو په زړونو تیر کړ، کونړ یې په توغندیو غلبېل غلبېل کړ خو ته ژیړې سترگې ورته گورې او کله له خولې دا سرېندې هم ورغوُئ چې چېرې دی طالب چې پاکستان ته ځوُاب ووایي

ته دخپل ورور قاتل یې، ته دخپل کور ویرانوُنکی او دخپلې مور، خور، ورېندار او انا دپړونی غل یې

ته په لس زره کرایه شوی قاتل او اجرتي یې، ته چرسي او ته بنگي یې. تاته شهید ویل د وطنوالو او وطن سره جفا ده.

اې دصلیبي پوځیانو لاس په نام غلامه! ستا حیثیت څه دی؟ وطن او وطنوالو ته دې خیر او کارنامه څه ده چې شهید درته ووایي؟!



# داتمرد لاس نیالګي ثمرې ته ورسیدل

خالد روان

داعش د وحشت، بربریت، د مسلمان وژنې او د یهودو د جوړې شوې پروژې نوم دی. نه د خلافت راوستو مئینان دي او نه خلافت د دوی په چټلو لاسونو راځي، چې د جګړې ټوله قرباني یې یوازې مسلمانان ورکوي. داعش د داسې پروژې نوم دی، چې اوس مهال ټولې نړۍ ته ښکاره شوه، چې دوی یوازې د مسلمانانو د وژلو لهپاره امریکا او اسراییلو روزلي دي. هماغوی پرمختللې وسلې ورکړي او ټول تجهیز او تمویل یې هماغوی کوي. داعش د فلسطین د حماس ډلې ته اخطار ورکوي؛ خو د صهیونیستي رژیم پلویانو ته غږ نه کوي.

داعش په افغانستان، عراق او سوریې کې یوازې مسلمانان وژلي. د مسلمانو مجاهدینو پر وړاندې ستر خنډ همدغه داعشیان دي. هلته یې د مسلمانانو ټولوژنې وکړې، په جبهة النصره، شام مجاهدینو او د القاعدې پر مجاهدینو یې ځانمرګي بریدونه وکړل؛ خو د امریکا، روسیې او د بشار الاسد د رژیم پلویانو ته سترګې نهشي پورته کولی.

داعش لوی ایران پرېښود او افغانستان ته راغلل. پکار وه چې داعش په نیمرزو، هرات او فراه ولایتونو کې راښکاره شوی وی او همالته یې د خلافت اعلان کړی وی. ځکه له ایران سره همدغه ولایتونه پوله لري. داعش په ناڅاپي ډول ننګرهار ته راغلل او لومړۍ جګړه یې له طالبانو سره پیل کړه. په اچین کې د داعش د وحشت بېلګې تراوسه د خلکو په ذهنونو کې دي. دوې میاشتې وړاندې په اچین کې دوه ډلهییز قبرونه وموندل شول، چې عام مسلمان یې په ډلهییز ډول شهیدان کړي وو او د کمونېستي رژیم د وحشیانو په څېر یې په ډلهییز ډول ښخ کړي وو.

داعش خلکو ته یو ځل بیا هماغه وخت وریاد کړ، چې کمونېستانو به هم خلک همداسې شهیدانول. د اچین، کوټ، بټې کوټ، چپرهار، پچیراګام او د خوږیانیو کیسې یې د اورېدو نه دي، چې داعشیانو په دغه سیمو کې څومره ظلمونه کړي؟ همدا تېر ژمی د خوږیانیو زرګونه کورنۍ د همدغو وحشیانو له لاسه بې کوره شوې او د خوږیانیو په ځینو سیمو کې تراوسه خلک خپلو مېنو ته ستانه شوي نه دي.

د امریکا، ناټو او د ملي امنیت لهخوا ډېره ښه پروژه پرمخ بیوړل شوه. د داعش په نامه یې ځینو کسانو ته وسلې ورکړې. ځکه ټولو خواوو د طالبانو د ماتولو او تسلیمولو پوره هڅې وکړې؛ خو بریالي نه شول. د پکتیکا د پخواني والي عبدالکریم متین هغه




خبرې مو په یاد دي، چې ویلي یې وو«د ملي امنیت کسانو په دغه ولایت کې دوه سوه زره ډالر پر خلکو وېشلي، چې د داعش په نامه راپورته شي. » د متین له دغو خبرو کولو څو ورځې وروسته له دندې ګوښه شو. د ولسي جرګې زیاتو غړیو په ښکاره وویل: چې د داعش تر شا د ملي امنیت او د ملي امنیت د شورا د مشر حنیف اتمر لاس دی. د همدوی په اشاره خلک وژني او په افغانستان کې مذهبي جګړې ته د سون‌توکي برابروي.

په افغانستان کې سُني مسلمانان، شیعه‌ګان، هندوان او سکهان د تاریخ په اوږدو کې په سوله‌ییز ډول اوسېدلي. د کورنۍ جګړې نه پرته نورو ټولو په ارام ډول ژوند کړی او تراوسه په سوله‌ییز ډول ژوند تېروي. داعش د عراق لوبه دلته هم تکراروي او سُني او شیعه د یوه بل پر وړاندې جګړې ته هڅوي.

څوورځې وړاندې په کابل کې د ټاکنو له‌پاره د نوم لیکنې پر مرکز برید وشو. څو شېبې وروسته یې مسوولیت داعش په غاړه واخیست. داعش ویلي وو، برید ابوالبرأ الشیرازي«د ایران اوسېدونکي» کړی دی. دا لومړی ځل دی، چې په داعش بهرنی او بیا د ایران اوسېدونکی په افغانستان کې برید کوي او مسوولیت یې هم داعش اخلي. هغه ایران چې د داعش پر وړاندې یې عملاً په عراق او سوریه کې جګړه پیل کړې ده.

داعش په تېرو څلورو کلونو کې ټول شیعه‌ګان په نښه کړي. د شیعه‌ګانو تکیه خانې، لاریونونه، غونډې او په نورو مراسمو یې بریدونه کړي، چې له همدې ځایه شیعه‌ګان هڅول کېږي چې سنیان په نښه کړي او دلته د مذهبي جګړې اور بل شي او افغانستان بیا د نویمو کلونو دور ته ورګرځي.

د داعش په دغه برید کې ۱۷۰ تنو ته مرګ‌ژوبله واوښته، چې تراوسه ۷۰ تنه مړه شوي او له ۱۰۰ ډېر ټپیان دي، چې ښځې، ماشومان، ځوانان او سپین ږیري یې د برید قربانیان وو.

**ننګرهار او داعش**

داعش بېګاه د ننګرهار په چپرهار ولسوالۍ کې درې ورونه چې ټول ډاکټران وو، حلال کړي. داعش په دغه ولسوالۍ کې د طالب په نامه د ښوونځیو مدیران، ښوونکي، زده کوونکي او نور بې ګناه کسان شهیدانوي او پړه یې بیا پر طالبانو اچوي.

د مشرانو جرګې مشر فضل الهادي مسلمیار هغه څوک دی، چې د داعش غړیو ته وسلې ورکوي، د ټپیانو درملنه یې په کابل او ننګرهار کې کوي او ټول ملاتړ یې همدغه مسلمیار کوي. د اتمر او مسلمیار د لاس نیالګي ثمرې ته ورسېدل او دادی پر عامو خلکو یې رڼا ورځ توره شپه کړه.




## نور سهار دی

فکرمل طالب

غازي ستورو مو کړی د تیارو په سر ګوزار دی
سهار دی نور سهار دی یو څه وخت انتظار دی

یو څه وخت انتظار دی د اشغال ټغر ټولیږي
پرځای یې سپین سپېڅلی اسلامي قانون جوړیږي
وزر د خوشحالیو راخور کړی نوبهار دی

یو څه وخت انتظار دی آزادۍ زیري راوړي
خندق یې بدرکه دی دې لرې زیري راوړي
مات شوی دابلیس دڅوځنګ لورو لوی قطار دی

یوڅه وخت انتظار دی سپین طالب به مو امام شي
ګونګۍبه کلیساوې شي اومات به تور باګرام شي
رادرومي فتوحات بیا دغزاو تود بازار دی

یوڅه وخت انتظار دی ټول پاپان دي زاره چاؤدي
د ستر خالد بچي یې له لښکرو نه راتاؤ دي
خوږه خاموشي جوړه په ابو رافع ګوزار دی

یوڅه وخت انتظار دی نور به دورخلافت وي
ملګریه فکرمله په صلیب به جوړ قیامت وي
شهیدو قافلو قدم آخیستی پر دې لار دی

## سپېڅلې سجده

راز و رمز دی له جماله په لمانځه کې
حمد شو ځکه لازواله په لمانځه کې

د ښیستونو، رڼاګانو، لطایفو
رحمت ووري له جلاله په لمانځه کې

مغرور حسن پرې له کمه ټول شي کیف ته
ځومره ښه ښکاري غزاله په لمانځه کې

د بنګړو په شرنګ سجده شوه سندریزه
موسیقي یې کړه حلاله په لمانځه کې

داودي نغمو ته تاو مړ ژواندی ذوق کړه
په اذان د وخت بلاله په لمانځه کې

نه دی شرک، پرې یوپه دوه شکستګي شوه
لا چې راشي د چا خیاله په لمانځه کې

عرش بوسې کوي، احساس اوړي را اوړي
د کعبې د خړ دیواله په لمانځه کې

د ادم کیسه رنګینه په شیطان شوه
په نخرو راځه وباله! په لمانځه کې

پریده سر ناګار د خدای په لمن کیدې
تا کړو بند د زلفو جاله! په لمانځه کې

ای بشر هر جاکه هستی چون گل بی خار باش
با ضعیفان هم ره وبامستمندانیار باش
ای جهان خواهی نخواهی برهمه خواهد گذشت
فکر آن وادی بکن خوش خُلق وخوش گفتارباش
جز خدا تا میتوانی حاجت از کس مخواه
با تلاش وسعی خود باخلق چون گلزارباش
هست شیطان در کمین ومیدهد انسان فریب
کن رها شیطان وهمچون مومنی بیدار باش

# غزل

خلیل همراز

لکه ځان لکه زړګی رابانديي ګران ده
تش په توره یو سړی راباندي ګران ده

دا چې خلک یې مئین لیوني بولي
بس همدغه لیوني راباندي ګران ده

مسته مینه الٰهي لري په زړه کې
هغه دنګ چینار زلمی راباندي ګران ده

په تنها سر رمه ساتي له لیوانو
پدې یوه عادت شپونکی راباندي ګران ده

یو ښکلا لري بل ډیر ده بې ازاره
ځکه هر ګلاب باېري راباندي ګران ده

غلامي نکړي، نه سر ټیټوي چاته
د دې پوري غره زمری راباندي ګران ده

ماتوم پرې د زیړي مازدیګر مینه
د شهید ګودر منګی راباندي ګران ده

زه خلیل همراز یې ګرځوم په جېب کې
د اشنا د لاس ځونډی راباندي ګران ده

# "دخندق عملیات"

غازي زلمي کوي غزا غزا
ځوانان روان دي په مسکا مسکا
تکتیک دی دخندق، برخلیک دی دخندق

دسپین رهبرپه قدم
دزړه دسرپه قدم
کوو سپیڅلې غزا
دپیغمبرپه قدم
روان کاروان ترسپین سبا سبا

دغرب ارمان دی میرات
مغرورلښکر یې شو مات
دلته پاپان کړي ساندې
سلګۍ کړي لات اومنات
طالب غالب راوړه برېابریا

تاوترې دمرګ انقلاب
ګالي دجرم عذاب
دایمان لومو کې ګیر
دلته راغلي احزاب
دننګ غورزنګ پیل دی هرخواهرخوا

دانګي دجنګ میدان ته
په دین دننګ میدان ته
زلمي په مینه مینه
دتودغورزنګ میدان ته
پردي غربي تښتي په شاپه شا

دپاک مرام په تکل
دسپین نظام په تکل
منصور دردمنه ځوانان
دپاک اسلام په تکل
خمار تر دارځي په خنداخندا



# رسنیو تل حقیقت تحریف کړی!

لیکنه: الیاس تکل













زه په دې اند یم چې کفارو ته به نظامي یرغل دومره مهم نه وي لکه څومره چې فکري او کلتوري یرغل ورته مهم دی، ځکه دوی په دې سره د مسلمانانو په فکرونو یرغل کوي، ترڅو یې داسې وروزي چې د خپلو اسلام ضد ګټو لپاره ترې په اینده کې کار واخلي.

یرغلګر چې کوم هیواد اشغال کړي تر هرڅه وړاندې یې هڅه دا وي چې ژورنالستان او رسنۍ تر خپل اغېز لاندې راولي، او د دې موخې لپاره بې اندازې مصارف کوي ترڅو له ولسونو حقایق پټ کړي او د دوی وحشتونه په ازادي غوښتونکو وروتپي.

رسنیو تل حقیقت تحریف کړی!

پرون ورځ او یو څو ورځې مخکې یې یو ځل بیا یو ستر حقیقت تحریف کړ، او یو لوی وحشت یې بل ډول تعبیر کړ، او د خلکو په سترګو کې خاورې ور وشندلې.

له نن څو کاله مخکې زموږ په سیمه کې طالبانو په یوه دولتي پوسته عملیات ترسره کړل، یاده پوسته یو ښوونځي ته په څو مترۍ کې نږدې وه، او هغه پوسته د مکتب په نوم یادې ده، دا چې د طالبانو راکټ ویشتونکي د را کټ په ویشتلو کې یې خاصه تجربه نه درلوده، نو را کټ د ښوونځي انګړ ته لږ نږدې ولګېد، په دې سره رسنیو ته موقع په لاس ورغله چې څنګه ترې استفاده وکړي، د ټولو رسنیو سر ټکی او سرخط دا وه چې طالبانو په ښوونځي راکټي برید کړی، خو حقیقت به بل ډول وه، په ښوونځي کې نه چاته ځاني او نه مالي تاوان اووښتی وه، او نه د برید هدف ښوونځی و.

خو اوس چې یرغلګرو او د دوي لاسپوڅو په قصدي ډول پرله پسې مدارس او مساجد په نښه کوي او رسنۍ ورته بلعکس جامه ور آغوندي، د دې پرخای چې ووایي چې یوه دیني مدرسه بمبار شوه، وایې چې د طالبانو په یوه ستره غونډه عملیات ترسره شوه.

لرې به نه ځو چې درسنیو تحریف په اړه یوه بېلګه وړاندې کړو، پرون ورځ یې په کندز کې په یوه دیني مدرسه د ختم بخاري په جلسه باندې وحشیانه بمباري ترسره کړه، چې په نتیجه کې یې په لس هاوو علماء کرام او طالب العلمان او عام مسلمانان شهیدان کړل، دا په داسې حال کې چې څو ورځې وړاندې یې په فراه رود کې هم دې ته ورته یو ستر وحشت ترسره کړی و او بیا یې بل نوم ورکړو چې هوایې ځواکونو د طالبانو پر یوه غونډه هوایي برید ترسره کړ.

خو زه وایم چې په ولسي خلکو بمبار کول او بیا هغوی ته د طالبانو نوم ورکول دا څه نوې خبره نه ده، دا د امریکایي اشغالګرو او د هغوی د لاسپوڅو غلامانو عادت دی دوی تل بلعکس غږېدلي دي.

او بل دا چې لاسپوڅې اداره ادعا کوي چې په دې مدرسه کې د طالبانو د رهبري شورا غړو ګډون درلود، چې بالکل له حقیقت څخه لرې خبره ده، لاسپوڅې اداره غواړي چې خپل جنایت وپوښي او د خلکو په سترګو کې خاورې وشیندي خو الحمد الله ولس مو هوښیار شوی هرڅه د سر په سترګو ګوري چې حقیقت څه ده.

بس نوره خبره معلومه ده چې دلته جنګ د مسجد او د کلیسا ده، دلته جنګ د کفر او د اسلام دی.



# کمونیزم څرنګه

## زمـوږ هیـواد ته راغی؟

قاري سعید

د کمـونیزم نظریـه لـومړی ځـل د الماني فیلسوف کارل مارکس لخوا مطرح شوه، د هغه ملګري انګلز دې نظریې ته وده او تشـریح ورکـړه تـر دې چـې پـه نړیواله کچه یې شهرت وموند. د لومړي نړیـوال جنګ پـه تـرڅ کې د روسیې د بلشویکانو انقلابي مـشر ولادیمیر لیـنن د المـاني قیـصر پـه مرسته پـه دې توانیـد چې د روسیې تـزاري واکمنـي رانسکوره کـړي او پـر ځـای یې پـه لـومړي ځـل د مارکس لـه نظریـاتو سره سم کمونیست نظام پیاده کړي.

د روسي کمونیـستانو پـه واکمنـۍ سره د مارکس او انګلز لخوا طرح شوې د اشتراکیت تیوري له نظر څخه عمل تـه راووتـه. پـه روسیـه کې لـه کمونیـستي انقلاب دوه کاله وروسته په ۱۹۱۹ م کال کې افغانسـتان لـه انګریـزي ښـکیلاک څخه خپلواکي تر لاسه کړه. د افغانستان ځـوان پاچـا امـان اللـه خـان چـې د افغانستان د اقتصادي انکشاف لپاره یې له هیڅ هڅې مخ نـه اړاوه، د نـورو غـربي هیوادونـو پـه شـمول یـې لـه کمونیـستي شـوروي اتحـاد سره هـم د یـارانې تـار وغځـاوه، چـې پـه دې ډول د اقتصـادي همکاریو تر عنوان لاندې روسي کمونیزم تـه پـه افغانسـتان کې د نفوذ لاره هـواره شوه.

د امـاني حکومـت او کمونیسـتي شـوروي اتحـاد تـر مـنځ لـومړنۍ مهمـه معاهده د ۱۹۲۱ میلادي کـال د فبرورۍ په ۲۸ امضاء شوه، د معاهـدې لـه مخې شورویانو ته حق ورکړل شو چې په کابـل کې پـه سفارت عـلاوه پـه هـرات، مـزار شریف، کندهار، غزني او میمنه کې پنځه قونسګلرۍ هم پرانیـزي. د دې معاهـدې له مخې اماني حکومت د روسانو لخوا د افغانستان د اشغال شویو برخو پنجدې او خیوا لـه دعـوی څخـه رسما تېـر شـو، لـه شـوروي سره ترانزیتـي قـرارداد وشـو او شـورویانو لـه افغانسـتان سره د نقـدي او نورو مادي مرستو وعده وکړه. (مناسبات افغانستان و شوروي ۱۷ مخ)

پـه دې سره افغانستان تـه د روسي کمونیزم پښه را خلاصه شوه او دلتـه یـې د استعماري موخـو لـه مخـې د معلومـاتو غونډولو، جاسوسۍ، کمونیستي تبلیـغ او اجیرانـو مونـدلو لـړۍ پیـل کـړه، پـه افغانستان کې د شوروي د پټو فعـالیتونو لومړني متصدیان د والتر او آقـابکوف پـه نوم هغـه تجربـه کـار جاسوسـان وو چـې ظاهرا د سفارتکارانو په نوم معرفي شوي وو خـو پـه حقیقـت کـې یـې دلتـه د کمونیستي افکارو د تشییع لپاره ژور کار پیل کړی و.

وروستي پـه ډاګـه شـوي معلومـات ښیي چې شوروي اتحـاد آن د امـان اللـه خـان او حبیـب اللـه کلکـاني لـه وختـه افغانسـتان تـه د اشـغال اراده درلـوده، د عملي کمونیزم بنیان ګذار ولادیمیـرلنین پـه ۱۹۱۹ مـیلادي کـال کـې ویـلي وو: افغانستان دمنځنۍ اسیا کیلي ده چې له پامه نه شي غورځول کیـدای او دا هیـواد بـه دهنـد پخـوا زمـوږ دپرمختـګ لپـاره دسـویز کانـال غونـډې مهـم رول لوبـوي (نبرد افغاني ستالین)

له همـدې ځایـه ویلـی شـو چـې پـه افغانسـتان د کمـونیزم یرغـل د ۱۳۵۷ دثور له اوومې نه دی پیل شوی بلکې لـه دې نیټې تقریبا شپږ لسیزې وړاندې لـه هغه مهاله پیل شوی چې پـه روسـیه کـې کمونیستانوواک ټینګ کړ او نیت یـې

درلود دهند او ارام سمندر په خوا دسوق الجیش په مهال له دې خاورې استفاده وکړي. د (دسائیس و جنایات روس در افغانستان) لیکوال لیکلي چې د حبیب الله کلکاني او نادر خان د واکمنۍ په وخت کې د امان الله خان پلویانو لکه عبدالحسین عزیز، عبدالهادي داوي او فیض محمد خان ناصري پرلپسې کوښښ کاوه چې د شوروي په مرسته یو ځل بیا امان الله خان واکمني ته ورسوي. اما شورویانو د امان الله خان له ډلې سره د مرستې لپاره لاندې شرطونه درلودل.

۱ ــ افغانستان باید له شوروي اتحاد سره لوی اقتصادي تړونونه وکړي.

۲ ــ شوروي اتحاد ته اجازه ورکول شي چې د طبیعي منابعو او نفتو د موندلو په موخه په افغانستان کې سروګانې او کیندنې وکړي.

۳ ــ افغانستان به له ماسکو سره نظامي تړون امضاء کوي او په ځانګړو شرایطو کې به ماسکو اجازه لري چې خپل افسران او نظامي مهمات افغانستان ته داخل کړي.

۴ ــ د افغانستان په خاوره کې به شورویانو ته د فعالیت زمینه برابریږي تر څو شوروي وکولای شي د افغانستان له خاورې په استفاده د هند بحر ته ځان نږدې کړي.

د ظاهر شاه پلار نادر خان چې شورویانو ته یې د امان الله خان د ملاتړو په نظر کتل، له شوروي سره اړیکو ته یې دلچسپي نه درلوده، نوموړي په ځینې انکشافي برخو کې استخدام شوي شورویان له هیواده وشړل او په عوض یې له نورو هیوادونو سره اړیکې ټودې کړې، د ظاهر شاه د حکومت په لومړیو کلونو کې هم دې حالت ډیر تغیر ونکړ، له روسانو سره یوازې د هیواد په شمال کې له ملخانو او نورو نباتي آفاتو سره د مبارزې په برخه کې او ځینې د ټیټې کچې تجاري تعهدات موجود وو. د ظاهرشاهي دور لومړنیو صدر اعظمانو هاشم خان او شاه محمود خان د افغانستان په ناپیلتوب باور درلود او له شوروي او امریکا سره د اړیکو توازن یې په دقت ساته.

خو په ۱۹۴۷ هـ ش کال کې په سیمه کې سیاسي تحولاتو، له هند څخه د انګریزانو وتلو او د پاکستان منځته راتګ شورویان د جنوبي اسیا په خوا تر هر وخت زیات زړور او هڅاند کړل. د افغانستان او پاکستان تر منځ د پښتونستان جنجال او د ځوان صدر اعظم داود خان روس پلوه کرکټر د شوروي لپاره ښه فرصتونه وو ترڅو په افغانستان کې د نفوذ پراخولو لپاره په بیلابیلو برخو کې خپلې ستراتیژۍ په کار واچوي.

شورویانو صدر اعظم داود خان او نوي ملت پال قشر ته د پښتونستان د خپلولو تمه ورکړه او له شوروي اتحاد سره نږدې دوستي یې ورته د افغانستان د حیاتي ضرورت په حیث تلقین کړه، په دې ډول له شوروي اتحاد سره د افغان حکومت د دوستۍ نوی پړاو پیل شو. لومړني تاوده تعلقات له تجارتي معاهدو او تودو سیاسي اړیکو پیل شول. د افغانستان مطبوعات چې د حکومت تر اغیز لاندې وو د شوروي اتحاد او اکتوبر د انقلاب په ګټه یې تبلیغات پیل کړل. وروسته دغه دوستي تعلیمي، فرهنګي او نورو برخو ته هم پراخه شوه. د ماسکو او کابل پوهنتونو تر منځ د تحصیلي بورسونه معاهدې وشوې، د قبایلي سیمو د زده کوونکو لپاره د رحمان بابا او خوشال خان لیسې جوړې شوې چې ډیری شاګردان یې د پوهنتوني زده کړو لپاره مخامخ شوروي اتحاد ته لیږل کیدل.

د ۱۳۳۴ هـ ش کال د قوس په ۲۲ مه د شوروي اتحاد مشر ـ خروشچف او دفاع وزیر بولګانین افغانستان ته په سفر راغلل، دې سفر دشوروي او افغان حکومت تر منځ د لوړې کچې تاوده مناسبات تمثیلول، د همدې تودو اړیکو په ترڅ کې له شوروي سره په بیلابیلو تعلیمي، تجارتي او انکشافي برخو کې تړونونو امضاء شول خو تر ټولو مهم تړون چې وروسته یې د افغانستان په وضعیت ژور اغیز پریښود له شوروي سره د پوځي همکارۍ په برخه کې تړون و.

داود خان د افغانستان د اردو د روزنې او تجهیز کار شورویانو ته وسپاره، په دې ډول له شوروي اتحاد سره د پوځي مناسباتو، تګ راتګ او همکاریو یو ناپایه او بې کنټروله لړۍ پیل شوه، د پوځي همکاریو او وسلو اخیستلو په

برخه کې له شوروي سره دا تړون د دې باعث شو چې شورويان د افغانستان په اردو کې نفوذ وکړي. ځکه د همدې پروګرام له مخې د افغانستان نظامي افسران د زده کړو لپاره ماسکو ته لیږل کیدل او بالمقابل شوروي ښوونکي او پوځي مشاورین افغانستان ته راتلل تر څو افغان عسکرو ته د وسلو استعمال ور زده کړي. شورویانو له دې فرصت نه په استفاده د افغانستان لپاره داسې پوځي افسران وروزل چې د ظاهري شکل او نسب له اړخه خو افغانان وو، مګر د فکر، تعهد او عقیدې له اړخه کاملا شورویان او د کرملین او کمونیزم ګټو ته ژمن وو. له شوروي اتحاد سره د داودخان همدې غیرموجه تړون وروسته افغانستان ته لویې بدمرغۍ راوړې چې یوه یې هم د کمونیستو او شوروي روزلیو پوځیانو لخوا په داودخان کودتا او د ثور د اوومې فاجعه وه، په دې کودتا کې د ځمکنیو عملیاتو مشرې د زرهدارو د څلورمې قوې د قومندان اسلم وطنجار په غاړه وه او د هوايي ځواکونو مشرې جنرال عبدالقادر کوله، وطنجار او عبدالقادردواړه له شوروي سره د داودخان د پوځي دوستۍ په لړ کې په شوروي کې تربیه شوي وو چې لومړنۍ یې د ټانګ او توپچي په برخه کې زده کړې کړې او دوهم د بریدګرو الوتکو پیلوټ و.

د خلق دموکراتیک ګوند جوړښت

په ۱۳۴۳ هـ ش کال کې د جدي په یوولسمه نیټه په افغانستان له کمونیستي افکارو څخه اغیزمن اشخاص د نور محمد تره کي په کور کې سره جرګه شول او د خلق دموکراتیک ګوند په نوم یې د مارکسیزم – لینینزم په فلسفه ولاړ سیاسي ګوند جوړ کړ. ددې ګوند په تأسیس سره په افغانستان کې د کمونیزم د خپریدلو پروسه نوي پړاو ته داخله شوه. شورویانو د دې ګوند څخه د پراخ ملاتړ په توسط په تعلیمي، فرهنګي او مطبوعاتي او سیاسي برخو کې د کمونیستي افکارو د خپرولو لپاره ژور کار پیل کړ.

په همدې مرحله کې د واکمنو غفلت او د کمونیستي فتنې د شیوع په اړه یې بې پروايي ددې باعث شوه چې زموږ د هیواد ګڼ شمیر مسلمانان ځوانان د کمونیستانو په غوږو شعارونو تیروځي له خپلو اسلامي عقائدو لاس واخلي او د کمونیزم دهري شیطاني نظریه ومني.

کمونیستانو که څه هم د تاریخ، اقتصاد او سیاست په برخه کې خپل ځانګړي استثنايي نظریات درلودل خو تر ټولو خطر پیښوونکې نظریه یې دهستۍ د تکوین په اړه وه. هغوی په دې برخه کې د ډاروین دهري نړۍ لیدته عقیده درلوده، کمونیستانو په خدای تعالی، ملائکه وو، اسماني کتابونو او رسولانو، جنت او دوزخ، قیامت اونورو معتقداتو ایمان نه درلود. دوی به ویل موږ یوازې د هغه څه وجود منوچې په پنځو حواسو یې درک کولای شو. دوی به ویل ماده ازلي او ابدي ده، نه زیاتیږي نه کمیږي یوازې له یوه حال نه بل ته تحول کوي. دوی به ویل د نړۍ ډول جریانات، حوادث، ژوند او مرګ د طبعي عواملو نتیجه ده، خالق او مدبر نه لري. په دې ډول دوی له دین څخه منکر و او د مارکس دا خبره یې ډیره ګردانوله چې دین د ټولنې افیون دی. العیاذ بالله.

د کمونیستانو له دې صریح کفر سره سره د ثور له انقلاب نه وړاندې څو لسیزو کلونو په جریان کې چې کمونیزم په افغانستان کې د زرغونیدلو او شیوع په حال کې و نه خو د افغانستان حکومت او نه هم عام خلک او نه د ټولنې مشران او مقتدایان د دې خطر مخنیوي ته په کماحقه توګه متوجه وو. ډیر کم شمیر علماء کرام وو چې دخدام الفرقان په نوم تنظیم له لارې یې د کمونیستي دهري فتنې په وړاندې سیاسي او تبلیغاتي مبارزه کوله. دغه راز یو شمیر پوهنتوني اسلامپال مبارزین و چې په کمو امکاناتو یې د اسلامي مبارزې توغ ځلانده ساته. نور د ټولنې مختلف اقشار د غفلت په داسې خوب ویده وو چې تر هغو یې د کمونیزم په اړه فکر لا نه کاوه تر څو د کمونیستانو شمیر له سلګونو څخه زرګونو ته ورسید او دومره قوي و سپین سترګي شول چې بله ورځ یې د ۱۳۵۷ هـ ش کال د ثور په اوومه نیټه په رڼا ورځ ټانګونه را وایستل او د تاریخي افغانستان څو سوه کلن نظام ته یې سقوط ورکړ او د اسلام په خاوره کې یې په کفري فلسفه د ولاړ نظام اعلان وکړ.

که بیرته عنوان شوې موضوع ته راشو او وپوښتو چې کمونیزم افغانستان ته څنګه راغی او کومو عواملو ورته زمینه سازي وکړه نو دا عوامل په لاندې ډول خلاصه کولای شو.

۱ - د کمونیستي نظریې نړیواله چرچه او هنګامه چې د شلمې پیړۍ په لومړۍ نیمایي کې په نړیواله کچه خورا جذابیت درلود او له غربي استعمار څخه یې د شرقي اولسونو د ازادۍ غبر پورته کړی و، همدې جذابو شعارونو ډیر ځوانان ورسره اغوا کړل او د کمونیزم په غیږ کې یې وغورځول.

۲– د پاکستان له جوړیدو وروسته، له دې نوي ګاونډي سره مخالفت او د افغانستان اقتصادي کلابندي چې افغانستان یې په شوروي اتحاد اتکاء ته مجبور کړ. چې بیا له شوروي سره همدا تاوده مناسبات او پوځي تړونونه افغانستان ته د کمونیستي مفکورې د راتګ سبب جوړ شول.

۳ – د صدر اعظم داود خان کمونیستي تمایلات، چې د خپلې صدر اعظمۍ په دوران کې یې له شوروي سره مناسبات اوج ته ورسول او د پوځي مرستو او روزنې تړونونه یې هم ورسره امضاء کړل. د ثور په کودتا کې د هوایي عملیاتو قومندان جنرال عبدالقادر له بي بي سي سره په مرکه کې ویلي چې په ۱۳۵۰ کال کې سردار داود ما او خو نورو کمونیستانو ته په یوه پټ ملاقات کې وویل چې داوطن ستاسو دی. هغه په ظاهر شاه د کودتا په اړه هم وغږېد او بیا یې وویل چې د افغانستان لپاره مناسب اقتصادي نظام (سوسالیزم) دی.

۴ – د اولس او نویو ځوانو متعلمینو او محصلینو د فکري سطحې ټیټوالی او د اسلامي شعور او پوهې نه درلودل. ځکه هغوی د خپلې عقیدې او اسلامي نړۍ لید په اړه تفصیلي استدلالي پوهه نه درلوده او تقریبا خالي الذهنه و نو ځکه ډیر په اسانه د کمونیستي افکارو تر تاثیر لاندې راتلل او له خپلې اسلامي عقیدې یې لاس اخیست.

۵ – د ټولنې په منځ کې د عامو پوهانو، علماو کرامو، د پوهنتون او مکتب د استادانو او لوستو کسانو غفلت او بې پروایي. هغوی په داسې حال کې چې کمونیزم د شیوع په حال کې و، په ټولیزه توګه دې ضرورت ته متوجه نه شول چې د کمونیزم کفري نظریه وپیژني، تحلیل یې کړي او بیا یې خپل اولس ته تشریح او نوی نسل یې له خطر څخه خبر کړي. په دې برخه کې ډیرو کم شمیر علماء کرامو، دپوهنتون استادانو او ځینو لیکوالو تنویري خدمت کاوه، چې هڅې یې ټول اولس ته نه رسیدلې.

## د علماؤ له ازار څخه ځان ساتئ

حجاج بن یوسف الثقفي یو ظالم، مستبد او جابر حکمران تېر شوی دی. عمر بن عبدالعزیز رحمه الله به یې په اړه ویل: "که د ټولو امتونو ظلمونه یوې خواته شي او له دې امت څخه صرف د حجاج بن یوسف ظلم ورسره وتلل شي، نو د دې امت تله به درنه وي.

حجاج بې شمېره صحابه کرام او تابعین په شهادت ورسول. تاریخ لیکي چې یو لک او شل زره 120000 کسان یې صرف په دار ځړولي دي کوم چې یې په جنګونو یا نورو طریقو سره وژلي دي له دې ماسیوا دي.

کله چې ومړ، نو یو تابعي په خوب کې ولید، چې ته خو دومره لوی ظالم وې الله تعالی څه درسره وکړل؟

حجاج ورته وویل: "الله تعالی د هر مسلمان په بدل کې یو یو ځل ووژلم او د مرګ خوند یې راباندې وڅاکه، خو د سعید بن جُبیر (چې ستر تابعي او د خپلې زمانې لوی عالم او محدث او د عبدالله بن عباس رضي الله تعالی عنه خصوصي شاګرد و) په بدل کې یې اوه سوه 700 ځله ووژلم، ځکه چې هغه د خپلې زمانې ستر عالم او په هغه وخت کې ټول خلګ ورته محتاج وو."

ښایي له دغې کیسې څخه به مو د الله تعالی په نزد د علماؤ قدر فهمولی وي.

الله تعالی دې په دغو ظالمانو یرغلګرو او لاس پوڅو یې د فراه او کندوز د شهیدانو علماؤ په بدل کې 70000000000000 ځله د مرګ خوند وڅکي.

# حرف های جالب متفکر غنی

۱- الله جل "شانو"

۲- حضرت محمد "سلیسلم "

۳- حسین "نواسه" خدا

٤- سعدی "علیه" سلام

۵- بی‌بی نسیمه "اولین" شهید اسلام

۶- کتابی‌که بعد از حدیث نبوی زیادترین اهمیت را دارد "بخاری شریف" است.

۷- تمام تان دختران "شخصی" من هستید.

۸- زنان افغانستان از "مادرکلان" من درس گرفتند که در پروژه های انکشافی شرکت کنند.

۹- "توازن قومی" در زندان بگرام در نظر گرفته نشده است.

۱۰ برنامه تثبیت منازل مسکونی و نفوس کشور طی چند ماه آینده از "فضا" آغاز می‌شود.

۱۱- بچه "خر! " (مخاطبش رول استوارت نوسینده انگلیسی)

۱۲- "ظرفشوی" می‌شوید! (مخاطب مهاجرین افغانستان در خارج)

۱۳- اگر بندش نکردم "بچه آدم" نباشم! (معدن هرات)

١٤- "فلوز" بالله

۱۵- ازدواج با "گاو" بهتر است از مردان. (در دانشگاهي در قزاقستان)

۱۶- اندر "کشاد" او کشاد آسیا. (کنفرانس پاکستان)

۱۷- تاریخ نویسان این یادداشت‌ها را با تاریخ باید ذکر کنند تا نسل‌هاي آینده عبرت بگیرند



۱۸- هزار دفعه "مرگ" بگویید مه خو عمر خوده تیر کردیم باقیش فدای سرتان. (کنفرانس خبري بیستم عقرب جنبش_تبسم)

۱۹- طالبان صلح کند ما در عِوَض "خَر" مي‌دهیم.

۲۰- پروژه "تپي" (تپي در مناطق ما به سرگین حیوانات مي‌گویند)

۲۱- من "پدر معنوي" ملت هستم.

۲۲- اوضاع کندز تحت "مدیریت" است.

۲۳- تو مره امي جارو ره بتي "جارو مثل قلم" است و از تفنگ کده بهتر است. (به کارمندان شهرداري)

۲۴- زن افغان "بازار" نداره نه ده ایجه نه ده خارج ما ده قدم اول کوشش مي‌کنیم که برایشان یك بازار درست ده داخل وخارج کشور پیدا کنیم. (در مورد صنایع دستي زنان افغانستان)

۲۵- "گاز" اساس زندگی را تشکیل مي‌دهد (جریان سخنرانی در مورد پروزه تاپی).

۲۶- مامون رشید خلیفه‌ي "عثماني" است. (عباسي‌ها و عثماني‌ها چهار قرن فاصله دارند!)

۲۷- "مقدار" زیاد مردم به کشورهاي خارجي پناهنده شدند. (در ویدیوي‌که در آن خودش را پدر معنوي خطاب کرد)

۲۸- به رکوع رفتن در نماز جنازه اسلام کریموف رییس جمهور ازبکستان.

۲۹- تکبیر گفتن در هنگام دعا در نماز جنازه جنرال محی الدین غوری

۳۰- که تا ویل چه زیم او ما ویل چه زیم - هم به تهیی هم به زیم که تا ویل چه تهیی او ما وویل چه تهیی - نه به تهیی نه به زیم (روز ثبت نام در انتخابات)

۳۱- مه وقتی ده مکتب بودم یک معلم عربی داشتم یک روز از مه سوال کد که گوساله ره ده عربی چی می‌گه مه گفتم اونا هیچی نمی‌گه می مانه کلان شوه باز "بقه" می‌گه. (در سخنرانی در باره کاتب هزاره.) (قابل یادآوري است، این یک ضرب المثل مشهور است اما وی به نام خود عنوان می‌کند و آنهم "بقر" را "بقه" مي‌خواند)

۳۲- ما خر چهار پا داریم ولی دوپا نداریم که اینجاه زیاد است. (در ایالات متحده امریکا)

۳۳- "نوامیس" دین مبین اسلام.

۳۴- علمای کراییم.

۳۵ اولاد فزیکی و غیر فزیکی.

۳۶- مردُم نمي‌فهمه که زمین تولید مي‌شه.

۳۷- به زبان "پشتو" اگر سوال دارید، بفرمایید، سوالات "دري" زیاد شد!

۳۸- عرض سلام و ادب داروم خدمت"شنوندگاي" شما و "ببینده‌گاي" شما!

۳۹- قسم مي‌خورم اگر "شنونده‌گان" و "بیننده‌گان" گفت، حاضرم خودم را دار بزنم!

۴۰- از موتر یک تیره کده سه تیره تیر می رود چون استحکاکش زیاد است و موتر دارای ۵ تایر از سه تیره کده استحکاکش زیاد اس (سمینار لیسه استقلال).

۴۱- زنان افغانستان فرمایش حضرت محمد ص است.

۴۲- یک‌موش بود از پشک میترسید وقتی پشک شد از سگ می ترسید..

۴۳- تلویزیونها را بانین از آنها باد میبراید. از شما بمب میبراید. (خطاب به نیروهای نظامی)

۴۴- حسن روحانی رییس جمهور، جمهوری اسلامی افغانستان.

۴۵- از حکومت هالند میخواهم گل لاله مارا پس بدهد.

۴۶- هرات باستان در تولید باد در جهان مقام اول را دارد.

۴۷- ما شیر هستیم بدون خبر به شیر نزدیک نشوید.

## د مال په خرڅولو کې دوکه کول

محمد مغولي رحمه الله وایی چې زه د عبدالله ابن عباس رضی الله عنهما سره ناست وم، څه خلک یی په خدمت کی حاضر شول او عرض یی وکړل،
مونږ د حج د ادا کولو په موخه راوتلی یوو او چه کله ذات الصفاح (د یو ځاي نوم دی) ته ورسیدو نو زموږ یو ملګري وفات شو، کله چه مونږ د هغه د پاره قبر کنستل پیل کړل نو ومو لیدل چه یو تور مار ټول قبر نیولی وه، بیا مو په بل ځای کی دویم قبر وکنستلو نو هلته هم همدا مار موجود وه، اوس مونږ مړی همداسی پری ایښی دی او ستاسو خدمت کی حاضر شوی یوو چه مونږ څه وکړو؟
ابن عباس رضی الله عنهما ورته وفرمایل:
دا مار دده هغه بد عمل دی د کوم عمل چه دې عادی وه، لاړ شی او هغه په همهغه مار والا قبر کی دفن کړی!
په الله می دی قسم وي که تاسو ټوله ځمکه هم وکنۍ نو دا مار به هلته بیامومی، دا خلک لاړل او هغه یی په هم هغه قبر کي دفن کړ چیرته چه مار وه،
له سفر څخه چه بیرته کورونو ته ستانه شول نو د هغه د ښځی څخه یی د هغه د عمل په اړه وپوښتل؟
ښځي یی وویل: زما خاوند به غله (غنم) خرڅول، روزانه به یی د بوري څخه د کور خرڅ راویسته او په هغه مقدار به یی په بوری کی بوس اچول،
"ګویا ده بوس د اصلی غنمو په بیه خرڅول او دا دوکه ده".

(رواه البیهقي في شعب الایمان، شرح الصدر ۲۳۹ و صححه الباني)

# مدرسه، سپینه پګړۍ، چورلکې، بمباري



الیاس

## مدرسه

مدرسه یعنې د تعلیم او تدریس ځای، مدرسه یوه مؤسسه ده چې ټولنې یې د تعلیم او تربیت لپاره بنسټ ایښی دی، مدرسه د نوي نسل د جوړښت لپاره یوه اساسي خښته ده،

د اسلام دښمنانو زموږ په اسلامي مقدساتو او اسلامي کلتور باندې تل یرغل کړی، د اسلام دښمنانو تل هڅه او کوشش کړی چې مدارس کله په یوه نوم او کله په بل نوم بدنام کړي، خو الحمد لله په ټولنه کې مو د ځوان نسل ضمیرونه لا ژوندي دي، کفار او د هغوی لاسپوڅي به په هیڅ ډول خپلو شومو اهدافو ته پرې نږدي.

## سپینه پګړي

سپینه بګړۍ زموږ په ټولنه او زموږ په دیني کلتور کې د پاکۍ، سپېڅلیا او دیانت نښه ده، په ټولنه کې یواځې تر ټولو معزز، مکرم او محترم انسان سپینه بګړۍ په سر کوي، په ټولنه کې دیني عالمان، شیوخ عظام، ملا امامان، د ټولنې مشران، او صوفیان، یواځې د سپینې بګړۍ لایق بلل کېږي، نو هر څوک سپینه پګړۍ تر هغه نه په سر کوي چې لیاقت یې پکې نه وي پیدا شوی، حتی اکثره طالب العلمان هم ترهغه وخته سپینه پګړۍ نه په سر کوي ترڅو چې نه وي فارغه شوي.

یواځې هغه وخت چې د یو طالب د علم زده کړې وروستي منزل ته ورسېږي، مروج علوم او فنون خلاص کړي او د احادیثو دوره پای ته ورسوي نو بیا ورته شیوخ عظام، او علماء کرام، او د ټولني مخور سپین ږیري، د تبرک او برکت لپاره سپینه پګړۍ ورپه سر کړي، د فراغت پګړۍ تړل او یا دستار بندي کول، دا د دیني تعلیم د پای آخري مراسم دي لکه څنګه یې چې د پوهنتون محصلین په اختتامي مراسمو کې ترسره





کوي، چې فارغ محصل پکې چپنې او ځانګړې خولۍ پر سر کوي، او له یوې نرۍ هیلو او خوشحالیو سره د خپل علمي سفر او یوه مهمه مرحله پای ته رسوي.

## چورلکې

دا هغه ړندې چور لکي دي چې کله ناکله د لاسپوڅي نظام په عسکرو هم بمبار کوي، او دا کښې چورلکې زموږ هغو بُز دله او ماتې خوړلي دښمن (هند) غلامي ادارې ته ورکړې دي، چې سل کاله وړاندې زمونږ نیکونو تر تاج محله او دهلي پورې زغلولي ول، او هلته یې وربانډې په سل ها ؤ کاله باداري او پاچاهي کړې وه.

## بمبار

زه په دې اند یم چې له یو محصل او له طالب العلم سره شاید تر ټولو ستر ظلم او غټه جفاء دا وي چې د خپل ژوند په همدې اخرینۍ مرحله او له خوشحالیو ډک محفل کې یې ورته د ژوند د پای ټکی کېښودل شي.

موږ هیڅ کله هم دا فکر نه کاوه چې له علماء کرامو او طالب العلمانو سره به دا سې یو ستر ظلم او جفاء وشي، موږ په دې فکر ؤ چې اوس خو هغه پخوانی وخت او د کمونیستي رژیم غونډې جهالت نه دی چې علماء دې داسې په ځنځیرو وتړل شي، یا دې په ظلم او وحشت سره شهیدان کړی شي، او یا دې د غارې امبلونه په قبرونو ورته واچول شي، ویل به مو چې اوس خو مدرسې آزادې دي او لاسپوڅی نظام ژمنه کړې چې د دیني علومو زده کوونکو ته مو اسانتیاوې برابرې کړي، او څو ځله یې په ځغرده ویلي چې خپل هغه طالب العلمان بچي مو د پردیو وطنونو له مدرسو څخه د خپل وطن مدرسو ته راوګرځوئ،

خو لا وخت نه وه تېر شوی چې څو ځله یې له علماء کرامو او طالب العلمانو سره ستر ظلم او وحشت وکړو، د کندوز وحشت یې اول ځل نه دی، لنډه بېلګه یې د فراه رود د یوې مدرسې ده، چې له دې څو ورځې مخکې یې هلته هم یو نه هېریدونکی ظلم او وحشت ترسره کړ، د فراه رود له پېښې یې څو اونۍ مخکې دکمپاین په نوم وحشي- صفته عسکرو په خوست کې په یوې مدرسې ستر وحشت ترسره کړو، او د خوست له پېښې نه څو اونۍ مخکې حیوان صفته د صفر یک قطعه په نامه یو نه بښونکی وحشت ترسره کړو، چې په دې ټولو نه پښونکو پیښو کې تقریبا تر پنځه سوه علماؤ، طالب العلمانو او عوامو مسلمانانو ته مرګ ژوبه رسېدلې.

مشران یوه خبره کوي: خبرې ډیرې سر یې یو دی، نو خلاصه خبر دا ده چې دلته جنګ د مسجد او کلیسا ده!



# کمونیزم او د افغاني کمونستانو جنایاتو ته یوه کتنه

مولوی عبدالهادي مجاهد

کمونیزم پر الحاد ولاړ یو فکري مکتب دی، ماده د هر څه اساس بولي، تاریخ د بشر- د طبقاتو تر منځ د جګړې او کشمکش او د اقتصادي عامل پر اساس تفسیروي. دغه فکري مکتب په آلمان کې د مارکس او انګلز له لوري رامنځته شو که څه هم چې کمونیزم ته ورته افکار په تاریخ کې پخوا هم په بېلابېلو شکلونو لیدل شوي او کار ورته شوی دی. دمارکس او انګلز افکارو ته بلشویکانو د لېنن په مشرۍ په روسیه کې هغه وخت د عمل جامه ورورواغوستله او د هغهو پر اساس یې په روسیه کې نظام او ټولنه جوړه کړه چې کله یې په ۱۹۱۷م کال کې د کمونیست انقلاب د بریالي کېدو په نتیجه کې د روسي شاهي حکومت له منځه یو ووړ. کمونستانو د زور له لارې نور ولسونه لاندې کړل او د هغوئ هېوادونه یې ونیول او د شوروي اتحاد په شکل کې یې یو لوی زورور دولت قائم کړ.

## د کمونیزم د فکري مکتب مهم او مشهور شخصیتونه لاندې خلک دي:

۱- (کارل مارکس) د مشهور یهودي حاخام مردخای مارکس لمسي- وو چې په ۱۸۱۸م کې زیږېدلی او په ۱۸۸۳م کې مړ شوی دی.

۲- (فردریک انګلز) په ۱۸۲۰م کې زیږېدلی او په۱۸۹۵م کې مړ شوی. انګلز د کمونیزم د فکر په رامنځته کولو او خپرولو کې د مارکس ملګری وو او د مارکس د ژوند تر پایه یې د هغه او دهغه د کورنۍ مصارف ورکول.

۳- (لېنن) چې اصلي نوم یې (ولادېمیر الېچ بولیانوف) وو په ۱۸۷۰م کې زیږېدلی او په ۱۹۲۴م کې مړ شوی دی. لېنن کمونیزم له نظریې څخه تطبیق ته راواوبست، او د شوروي اتحاد دولت یې رامنځته کړ.

۳- (ستالین) چې اصلي نوم یې (جوزېف وادیونوېچ) وو. هغه په ۱۸۷۹م کې زیږېدلی او په ۱۹۵۴م کې مړ شوی. جوزېف ستالین د کمونست ګوند سکرتر او او تر لېنن وروسته د شوروي اتحاد مشر شو. ستالین په قساوت، ظلم، استبداد، دېکتاتورۍ او او د خپلو مخلفینو په وژلو او شړلو کې نړیوال شهرت کتلی وو.

۴ (تروتسکې) چې حقیقي نو یې (بروشتاین) او د مارکس او لېنن په څېر یهودي الأصل وو. هغه په ۱۸۷۸م کې زیږېدلی او په ۱۹۵۴م کې د ستالین په تدبیر ووژل شو. هغه د کمونست ګوند د بهرنیو چارو مسؤول او بیا وروسته د ګوند د چارو مسؤول ټاکل شوی وو چې وروسته بیا له ګوند په خلاف په فعالیت تون شو او ستالین له ګونده وشاړه.

کمونیزم د زور د استعمال، پراخ او مؤثر دعوت او په نړۍ کې د کاپیټالیزم په مقابل کې د عکس العمل په ډول په ډېرو لږو کلونو کې د نړۍ په هېوادونو کې خپور شو او په شوروي اتحاد، چین، چکسلواکیا، بلغاریا، شرقي المان، یوګوسلاویا، پولنډ، رومانیا، البانیا، هنګري او کوبا کې یې نظامونه او حکومتونه جوړ کړل، او د اسلامي نړۍ او نورې نړۍ په هېوادونو کې هم احزاب او د مارکسیزم پلوي حکومتونه رامنځته کړل.

د کمونیزم اساسي عقائد او افکار په لاندې ډول وو:

۱- پر مادیاتو ایمان درلودل او له غیبیاتو انکار کول.

۲- انساني تاریخ یوازې د مادې پر اساس تفسیرول.

۳- د دین او دینپالنې له منځه وړل او د الحاد او اباحیت خپرول.

۴- د شخصي ملکیت له منځه وړل.

۵- د کورنۍ د نظام له منځه وړل.

۶- د اخلاقو له منځه وړل او پدې نامه ټول هغه بندونه ماتول چې د انسان او د خوند اخیستلو تر منځ مانع ګرځي.

کمونستانو په نړۍ کې تر سلو ملیونو زیات خلک ووژل چې په دوئ کې تر څلوېښتو ملیونو یوازې مسلمانان ول چې په کریمیا (قرم)، قوقاز، منځنۍ اسیا (غربي

ترکستان)، شرقي ترکستان یا نننی د چین (سینگ کیانگ) البانیا، مصر، عراق، سوریه، اندونېزیا، افغانستان او نورو هېوادو کې د کمونستو نظامونو او انقلابیانو لخوا ووژل شول.

کمونستانو په نړۍ کې د اسلام او مسلمانو په خلاف په خپله جګړه کې له لاندې تګلارو او اسالیبو کار واخیست:

۱- د موقتې مودې لپاره په درغو د اسلام په مقابل کې نرم درځ نیول تر څو د دوئ د کمزورۍ په مرحله کې مسلمانان د دوئ په خلاف راونه پارېږي.

۲- د اسلام علماء او متدین مشران بدنامول او هغوئ د استعمار او صهیونیزم اجیران ګڼل.

۳- د خپل تسلط په ځایونو کې د تعلیمي نصاب په ټولو مراحلو کې د کمونیزم عقائد په لازمي ډول ور داخلول.

۴- د اسلامي حرکتونو د رامنځته کېلو مخنیوی، د موجودو اسلامپالو په ډېرې بېرحمۍ له منځه وړل، تېښتې ته یې اړ کول او خلک له هغوئ څخه متنفر کول.

۵- الحاد پلوو لیکوالو او مفکرینو ته د بیان ټول فرصتونه په لاس ورکول، او د هغوئ په توسط نویو نسلونو ته دا ورتلقینول چې اسلام نور د منلو او تطبیق وړتیا نه لري، او دا چې نور باید مسلمانان د اسلام احکامو او عقائدو ته د تسلیمېدو پر ځای دې له خپلو عقلونو کار واخلي.

۶- د مسلمانو ولسونو تر منځ د هر ډول اسلامي تړاو له منځه وړل، او پر ځای یې د ولسونو تر منځ د کمونیزم تړاو تقویه کول.

۷- په مسلمان میشتو سیمو کې د مساجدو او دیني مراکزو د بندولو تر څنګ د مسلمانو ټولنو د افرادو په ضمیر کې د عقیده ورانوونکو کیسو، ناولونو، ډرامو، لکچرونو، سیمینارونو، کتابونو، جریدو او نورو نشریو د خپرلو له لارې د اسلامي عقیدې او باورونو له منځه وړل.

۸- ساینس او د هغه اکتشافات د دین په مقابل درول، او خلکو ته دا ورتلقینول چې ساینسي ـ موندنې حقائق او دیني باورونه خرافات دي.

۹- اسلامي نصوص له خپل اصلي روح او معنی څخه خالي کول او پر ځای یې د کمونیزم روح او معنی ور اچول.

۱۰- په ډله ییز ډول مسلمانان له منځه وړل او یا یې له خپلو سیمو په زور شړل او په پاشلي ډول یې په نورو سیمو کې پداسې ډول ژوند ته مجبورول چې خپل دیني او قومي هویت ونه لرلی شي، او د یو څه وخت له تېرېدلو وروسته په نورو ولسونو کې ور جذب شي.

۱۱- د دین د علماوو وژل او یا یې په شاقه کارونو مصروفول.

۱۲- د شرعي محکمو او قوانینو له منځه وړل، او خلک کمونستي محاکمو ته په ورتللو مجبورول.

۱۳- د جسدي تعذیب بېلابېل ډولونه لکه: پر سر مېخکوب کول، په اور سوځول، په ټوپک د نښې د پخولو لپاره د هدف په حیث کارول، تر مرګه په زېر زمینیو کې بندیانول، په برقي آلاتو تعذیبول، په دوو مختلف الجهته څرخونو پورې تړل او بندونه یې یو له بله سره جلا کول، د نوکانو وېستل، د بدن د غوښو پرېکول، په سخته یخنۍ او واوره کې لوڅ ساتل، د بندیانو په خولو، پوزو او سترګو کې کیمیاوي مواد اچول او د روحي او جسمي تعذیب په نورو مېتودونو تر هغه وخته ربړول چې د کمونستانو مقصد به ورڅخه حاصل شو.

کمونستانو (اِله)، (پیغمبر) او (دین) د ټولنې اپین بلل. له غیبیاتو یې انکار کاوه، له یهودیته پرته نور یې له ټولو دینونو سره دښمني وه، او په دې نظر ول چې ملایان او دیني طبقه په دې اپینو خلک بې حسه کوي او د ځان تابع یې ګرځوي.

کمونیزم دانسان د پیدایښت په اړه د (ډاروین) نظریه منلې وه، هغه نظریه چې انسان د الله تعالی مخلوق نه بولي، بلکې پدې نظر دي چې انسان له اوله د اوبو په تل کې د یوې جرثومې په شکل پروت و، د وخت په تېرېدو سره یې د چنچي شکل ونیو او د سمندر څنډې ته راغی چې دې جرثوم وروسته د بل حیوان شکل ونیو، او دې حیوان بیا تر ډېرو مراحلو له تېرېدلو وروسته د بیزو شکل اختیار کړ، وروسته د تکامل بل پړاو ته داخل شو او د بیزو شکل یې ونیو او بیا وروسته په چمپانزې بدل شو. چمپانزې چې د بیزوګانو یو ډول دی انسان ته ورته حرکات اجراکوي له څه وخت وروسته یې لکۍ او ویښته توی شول، او د اوسنی زمانې انسان ترې جوړ شو.

د اروپایي فیلسوف (چارلس ډاروین) د دې نظریې له وړاندې کولو هدف دا وو تر څو هم د مخلوقاتو له خالق څخه انکار وکړي، او هم هغه عقیده تکذیب کړي چې انسانان د الله تعالی په قدرت د آدم او حوا له ذاته پیدا شوي دي چې د ټولو دینونو هم پر همدې متفقه عقیده ده، او هغه داسې چې آدم علیه السلام د الله تعالی له لوري لومړی خلق شوی انسان دی، له ده یې حوا خلق کړه، او بیایې د دوئ دواړو له تولد او تناسل څخه د انسانانو لړۍ پیل کړه.

د ډاروين همدا نظريه د (كارل ماركس)، (انګلز) او له هغه وروسته د (لينن) لخوا خپره شوه، او هغې ته يې انکشاف ورکړ، تر دې چې دې نظريې په تعليمي نصابونو کې ځای وموند او د مکتب او پوهنتون شاګردانو ته به ديوې منل شوې عقيدې په حيث تدريسېده.

تر ماركس او انګلز وروسته د (فردريک نيچه) په نوم بل الماني فيلسوف چې له ۱۸۴۴م تر ۱۹۰۰م يې ژوند کړی راغی، له ټولو اديانو يې د انکار فلسفه وړاندې کړه، او دا نظريه وړاندې کړه چې - نعوذبالله - (إله) مړ شو، او اوس انسان په خپله (اِله) دی. که څه هم چې د نيچه د وينا مقصد دا نه وو چې د نړۍ او د ټول عالم خالق مړ شوی، بلکې د هغه مقصد په هغه وخت کې د اروپا په هغو ميتافيزيکو (ماوراء طبيعت) باورونو باندې چې اروپايي تدين (اله) ته منسوبول نقد کول وو، خو کمونستانو د هغه له نظريې داسې تفسير واخيست چې دا چې انسان د سمندر، غرونو او وچې تر تسخيرولو وروسته تر فضا پورې ټول تسخير کړي دي او د خپل عقل پوخوالي ته رسېدلې دی، نو د دې پر ځای چې انسان دې د (اله) وجود ته ضرورت ولري نور پخپله د الوهيت مرتبې ته رسېدلی دی. او هغه څوک چې عقلي تکامل ته رسېدلی وي او پخپله (اِله) وي هغه نور (نعوذبالله من ذلک) نه پيغمبر ته ضرورت لري، او نه کوم اسماني کتاب ته.

همدارنګه يې دا نظريه هم وړاندې کړه چې پر انسانانو باندې داسې يوه زمانه راتلونکې ده چې د اوسنيو انسانانو او د هغې زمانې د انسانانو ترمنځ به دومره فرق وي لکه د ننني انسان او پرونۍ بيزو ترمنځ چې وو. ده دا ډول انسان د (Super Man) په نامه ياد کړ، هغه چې غرب يې اوس ديوه تصور په توګه مني او په اړه يې ډول ډول خيالي فلمونه جوړوي.

کمونستانو د انسانانو تر منځ درې شيان (زر (دارايي)، زور (حکومت)، زن (ښځه) شريک بلل، او دا نظريه يې لرله چې هېڅوک بايد په يوازې او شخصي- توګه د دې شيانو مالک نه وي، که څه هم چې وروسته بيا کمونستانو په عملي لحاظ پدې نظرياتو کې تر ډېره حده ترميمکاري وکړه.

کمونستانو د دې نظريې د تطبيق لپاره د ټولنې د طبقاتو تر منځ د مساوات راوستلو په مقصد طبقاتي مبارزه لازمي ګڼله. د کارګري انقلاب په نامه يې د ټولنې د بانفوذه خلکو، خانانو، سرمايه داره او روحانيونو پر ضد مبارزه شروع کړه، او هر ځای به يې همدا شعار بدرګه کاوه چې (د نړۍ کارګرانو سره يو شئ). دوئ غوښتل تر څو ټيټه او کارګره طبقه راپورته شي، خانان او ملکان، ملا او محراب، قران او پيغمبر او ټول ټولنيز او الهي اصول له منځه يوسي، او بيا دې د کارګري انقلاب په نامه د کارګرانو داسې يو نظام رامنځته شي چې پر هر څه حاکميت ولري، او د دوئ دولت دې بيا هر څه پر دوئ په مساوايانه توګه مصرفوي. نور به نه خانان خاني کوي، او نه به غريب غريب پاتې کېږي. دوئ د الله تعالی له دې تقسيمه منکر ول چې فرمايي: (أَهُمْ يَقْسِمُونَ رَحْمَتَ رَبِّكَ نَحْنُ قَسَمْنَا بَيْنَهُمْ مَعِيشَتَهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَرَفَعْنَا بَعْضَهُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِيَتَّخِذَ بَعْضُهُمْ بَعْضًا سُخْرِيًّا وَرَحْمَتُ رَبِّكَ خَيْرٌ مِمَّا يَجْمَعُونَ (32)) (سورة الزخرف: ۳۲).

ترجمه: (آيا دوئ ستا د رب رحمت وېشي؟ (داسې نده بلکې) موږ وېشلې په منځ د دوئ کې معيشت د دوئ په ژوندون لږ کې او پورته کړي مو دي ځينې د دوئ پر ځينې نورور په مرتبو کې چې ونيسي- ځينې د دوئ (چې غنيان دي) ځينې نور (چې فقيران دي) تابعان کارکوونکي).

کمونستانو به ويل چې په تاريخ کې چې څومره جګړې تېرې شوې دي هېڅ يوه يې هم حق او باطل نه لري، بلکې ټول د ماديانو د لاسته راوړلو لپاره ترسره شوي دي. که پيغمبرانو د پيغمبرۍ دعواوې کړي دي نو هم يوازې او يوازې د دې لپاره يې کړي چې په خلکو کې خپل حيثيت لوړ کړي، شتمنۍ يې قبضه کړي، او پر ملتونو خپل حاکميت قائم کړي. نه ورکې د کفر او اسلام موضوع هدف وه، او نه هم د حقپالو او باطل پرستو موضوع، بلکې ټول له يوه سره د ماده پرستۍ پر بنا را منځته شوي دي.

کمونستانو د تاريخ دغه ډول تفسير ځکه کاوه چې دوئ په نړۍ کې تر ټولو ارزښتمن شی ماده بلله، او پدې نظر ول چې يوازې بايد همدا وپالل شي.

کمونستانو د حرام په نامه کوم څه هم په خپل قاموس کې نه لرل، او ټول څه يې حلال ګڼل. دا ځکه چې دوئ د (حرام) تصور له ژوند څخه د پوره خوند اخيستلو پر وړاندې خنډ ګاڼه. له همدې امله خو کمونيزم ته اباحيت هم ويل کېږي يعنې هر څه ورکې مباح دي.

کمونيزم د لاتيني د ((communis له لفظ څخه چې د انګليسي- د (Common) يا (universal) په معنی دی اخستل شوی چې د عام او شايع معنی لري چې له همدې امله يې په عربي کې (الشيوعية) بولې. او دا ځکه چې هر څه يې د پلويانو تر مينځ خپاره، مشترک او شايع دي.

دا نظریات په لومړي ځل د مارکس او د هغه د ملګري انګلز لخوا وړاندې شول، او وروسته د لینن لخوا د یوه نظام او حکومت په شکل کې تطبیق شول.

په افغانستان کې د کمونیزم خپرېدل:

شوروي اتحاد د کمونیزم نظریات افغانستان ته هم راصادر کړل، تر څو لدې لارې افغانستان تسخیر کړي، افغانان په خپل کنټرول کې ودروي، د عربو بحر ته په رسېدو د عربو د تېلو منابعو او نورو اقتصادي اهدافو ته ځان ور نیږدې کړي، او هم پدې توله سیمه کې د غرب د نفوذ مخه ونیسي.

د دې عقائدو له خپرېدلو وروسته په هېواد کې (د افغانستان ډېموکراټیک ګوند) په نامه د کمونستانو حزب رامنځته شو. دې ګوند په افغانانو کې د خپلو نظریاتو د خپرولو لپاره جریدې رامنځته کړې چې په هغو کې یوه د نور محمد ترکي د ځانګې لخوا د بارق شفیعي په مشرۍ د (خلق) او (بله) د ببرک کارمل د ځانګې لخوا د سلیمان لائق په مدیریت د (پرچم) په نامه ونومول شوې. له څه وخت وروسته د نور محمد ترکي او ببرک کارمل تر منځ اختلافات رامنځته شول چې د دې ګوند د تقسیمېدو سبب شول. د نور محمد ترکي پلویان د خلق په نامه سره را غونډ شول، او د ببرک کارمل پلویان د پرچم په نامه، خو دواړو ډلو به په رسمیاتو کې ځان (حزب ډېموکراټیک خلق افغانستان) نوماوه.

دوئ د ظاهر شاه د حاکمیت په وخت کې په ښکاره په فعالیت پیل وکړ. په افغاني مکاتبو، لیسو او تعلیمي مراکزو کې یې فعالیتونه شروع کړل، او د ځان لپاره د پلویانو د روزلو په مقصد یې تقریبا په ټول افغانستان کې فکري او تربیوي حلقې تأسیس کړې. دوئ په دې فعالیتونو او حلقو کې د کمونستو ادیبانو، فیلسوفانو، لیکوالو او سیاسي رهبرانونو په تېره د لینن فکري ادبیات او کتابونه تدریسول، روسي او کمونستي ناولونه، مقالې، فلسفه، عقاید او کتابونه به یې ژباړل او بیا به یې د خپلو پلویانو په واک کې ورکول.

دا فعالیتونه تر دې ورسېدل چې یوه لویه برخه د هېواد خلک چې زیات یې ځوانان ول په خپل صف ور داخل کړي.

دې نویو او پر جوشه ځوانانو د دې نظریاتو په خپلولو له ملا، اسلامپالي، حاجي، مخور او ولسي مشر سره دښمني شروع کړه، او الله تعالی، قرانکریم، پیغمبر او دین ته په سپکاوي یې پیل وکړ. تر دې چې د دې ګوند ټول نظریات د کفریاتو په توګه په ټول هېواد کې د خلکو تر منځ علني شول، او د خلکو حساسیتونه او له دین څخه د دفاع احساسات یې راوپارول.

د دې ګوند د نظریاتو او پیروانو په خلاف د خلکو اسلامي احساسات راوپارېدل، او د مخالفت لپاره یې د مسلمانانو فکري او سیاسي بهیر په جوړېدو او ځوانان ورکې په منظمېدو شول چې ځینو یې له مدرسې، مسجد او محرابه سر راپورته کړ، او ځینو یې له لیسو، پوهنتونو او تعلیمي مراکزو. په پوهنتونو کې محصلین له خپلو هغو اسلامپالو استادانو څخه چې په مصر کې یې زده کړې کړې وې او د مصر-له مسلمانانو دعوتګرانو په خاص ډول له (الاخوان المسلمون) څخه یې اسلامي فکر اخیستی وو متأثر شول، او د ګروپونو او تنظیمونو په شکل یې د کمونستانو په خلاف لورې ونیو.

اسلامپالو استادانو به د اسلامي فکري ادبیاتو په ژباړلو د ځوانانو افکار جوړول، او هغوئ به یې له کمونستانو څخه د خپل دین او وطن د دفاع په روحیه روزل. دې سرشاره او با احساسه ځوانانو چې د انجینیر حکمتیار، استاد رباني او استاد سیاف په څېر خلک هم پکښې ول، عملاً د کمونستانو خلاف مبارزې ته داخل شول او د هغوئ د مخنیوي فعالیتونه یې پیل کړل.

ظاهر شاه چې د اسلامپالو راپورته کېدل ولیدل نو هغوئ یې تر فشارونو لاندې راوستل چې دې کار د کمونستانو تقویه کېدلو ته نوره هم زمینه سازي وکړه. دوئ په دولتي ادارو کې د خپل فکر او تګلارې خلک پیدا کړل، او په پوځ کې یې د خپلو عقائدو په نشرولو پیل وکړ چې له امله یې زیات ټیټ رتبه او ځیني لوړ پوړي پوځیان هم ورخپل کړل.

هغه وخت چې د ظاهر شاه د تره زوی او اخښي داود خان پر ظاهر شاه سپینه کودتا وکړه او واک یې تر لاسه کړ، نو په خپله کابینه کې یې کمونستانو ته هم ځای ورکړ. دا ځکه چې له یوې خوا کمونستانو زیات نفوذ درلود، او له بلې خوا شوروي اتحاد د هېواد په څنګ کې قرار درلود چې له کمونستانو سره یې ټینګې اړیکې لرلې. داود خان غوښتل د کمونستانو په توسط له شوروي سره اړیکې لا ټینګې کړي، تر څو یې له اقتصاد، تخنیک او قدرت څخه استفاده وکړي چې په دې کار کې یې ځانته د کمونستانو ورنژدې کول مناسب ګڼلي وو.

داود خان د خپل حاکمیت په وخت کې د بریژنف د ملاقات لپاره شوروي ته په سفر لاړ. خو هلته برژنف د ده د توقع خلاف رویه ورسره وکړه چې دې کار داود خان ته غوسه وروسته او د مجلس له جریانه راووت. دی که څه هم دین ته ډېر وفادار او متقي انسان نه وو، خو دې پېښې ده ته ټکان ورکړ،

او په دې يې پوه کړ چې روسان د ده د زوال سبب کېدای شي.

له ماسکوه له راستنېدو وروسته پـدې فکر کې شو چې د شوروي پـر ځـای بایـد لـه نورو سیمه ییزو او په خاص ډول لـه عـربي او نورو ګاونډیو هېوادونو سره خپل روابط ښه او اقتصادي تعامل ته وده ورکړي، نـو هماغـه وو چې لومړی يې سعودي ته سـفر وکـړ او هلتـه يې له ملک فيصل سره وکتل، بیا پاکستان تـه وروګرځېد او له بوټو سره وکتـل چې لـه امله يې لدې هېواد سره خرابي شوي اړيکـي بېرتـه ترمیم کړي. وروسته پر نورو اسلامي هېوادونو وګرځېد او د هغو هېوادونو له مشرانو سره يـې وکتل. لده سره په دې سفر کې د ده د تجارت کمونست وزیر محمد خان جلالر هم ملګری وو چې دا ټـول جریانـات يـې څـارل. جلالـر چې له داود خان سره د روسانو پـه بـده وضع خبر وو د داود خان په نویو عزایمو پوه شو، او هـم يـې تـر دې وروسـته د کمونسـتانو خرابیدونکی برخلیک درک کړ.

داود خان چې کلـه د دې هېوادونـو لـه سفره هېـواد تـه راسـتون شـو، سـمدسي يـې د کمونستانو مشران زندان ته ولېږل. دا کار يې له دین او اسلام سره د خواخوږی پر بنیاد نـه وو، بلکې د دې پخاطر چې هغوئ د ده په خلاف راپورتـه نـه شي او کودتـا ونـه کـړي. خـو کمونستانو تر دې وخته خپلې ریښې پـه ټولـو تعلیمي او پوځي مراکزو او دفاترو کې غزولې او ټینګې کړي وې. حفیظ الله امین او ملګري يې ترکي مخکـي لـه مخکـي د داود خـان پـه خلاف د کودتا نقشه او پلان طرحه کـړی وو. کله چې داود خـان ترکـی او ببـرک زنـدان تـه ولېږل، په امین پسې يې هـم پـولیس ولېـږل. د لېږل شویو پولیسو مشر- جګړن عبـدالغني تـه وظیفه ورکړل شوې وه چې حفیظ اللـه امـین

ونیسي او توقیف خانې ته يې واچوي. هغـه د ثور د شپږمې په شپه د حفیظ الله امین کور ته ورغی، د هغه کور يې تلاشي کړ، خو د دې پر ځای چې امین له ځان سره توقیـف خانـې تـه ورسوي، تر سهاره يې په خپل کـور کـې نظـر بند کړ چې ځینـې خلـک دا دهغـه وظیفـوي غفلت بولې او ځینې نور يې بیا د چپیانو لوري ته د هغه د تمایل له امله قصدي کار بولي.

د جګړن عبدالغني دا کار چې امین يـې په شپه کې بندي نـه کـړ بلکـې تـر سـهاره پـه خپل کور کې دپاتې کېـدو فرصـت ورکـړ د د کمونستانو د کودتا د عملي کېدو زمینـه برابـره کړه، ځکه د همدې شپې په سهار وختي امین خپل زوی عبـدالرحمن تـه یـو کـوچنی خـط چې د کودتا د عملي کولو امر و ورکـړ چـې د ګونـد د مرکـزي کمیټـې غـړي سـید محمـد ګـلاب زوی تـه يـې ورسـوي. دا لیـک پـه حقیقت کې د ګوند د نظامي مسؤول حفیظ الله امین لخوا د کودتـا فرمـان و، سید محمـد ګـلاب زوی د ثـور د شپږمې لـه سـهاره بیـا د شپې تر یوې بجې پورې په اردو او ټولو ادارو کې خپلو کسانو ته د سبا ورځې د کودتا پیغام ورساوه. د ثور په شپږمه حفیظ الله امین توقیـف خانې ته واچول شو، خو په داسې حال کې چې هغه لا سهار وختي له خپله کوره د کودتـا فرمـان جاري کړی و. د کودتا نقشه د ده د ګوند د پـاتې مسؤولینو په واک کې ورکړل شـوه. ګونـد هـم د نقشې د عملي کولو ببړنـی اقـدام وکـړ. د کابـل د زره دارو له فرقې، د بګرام لـه هـوایي میـدان او د ښار له نـورو عسـکري قرارګـاوو پـوځي افسرانو راپورته شول، ارګ يې محاصره کړ، بیا يې بمبـار پرې وکړ او داود خان يې لـه خـپلې کـورنۍ سره یو ځای وواژه.

د داود خان له وژلو وروسته کمونستانو زندان مات کړ او د ګوند ټول کمونست مشران

يې له زندانه راوویستل. سم دستي وروسته اسـلم وطنجار په راډیو ټلویزیون کې اعـلان وکـړ چـې داود خان او د یحیی د کورنۍ حاکمیت له منځـه ولاړ، انقلاب کامیاب شو، او نور به په هېواد کـې ډېموکراټیک ګوند حاکم وي.

د کمونستانو له راتګه وروسته پـه هېـواد کې یو نوی عهد پیـل شـو. پـه هېـواد کـې ۱۴ کالـه جنـګ او وینـې تویېـدل، د (۲ میلیونـه) افغانـانو وژل کېـدل، د (۵ میلیونـه) افغانـانو مهاجر کېدل او ټول هېواد په کنډواله بدلېـدل د دې عهد لویې مـادي لاسـته راوړنې دي. دا چې د افغان ولس معنویاتو ته يې څومره لویـه ضربه ورکړه هغه نه اټکلېدونکې ده.

## پـه افغانسـتان کـې د کمونسـتانو جنایات:

د ۱۳۵۷هـ ش کال د ثور پر ۷ چـې کلـه کمونستانو پر دواد خان کودتا وکړه، داود خان يې وواژه او واک يې په لاس کې واخیست نو خپل نوي رژیم او د داود خان د نظام له منځه وړلو ته يې (د ثور د انقلاب) نوم ورکـړ. دغـو ثوریانو په هېواد کې د اصلاحاتو په نامه په یـو لـړ داسـي اقـداماتو لاس پـورې کـړ چـې د د دوئ د نظـام پـه خـلاف يـې د ټـول ولـس احساسات راوپارول او پر وړاندې يې راپورتـه شول. هغه اقدامات اوږد نوملړ لري چې دلتـه يې د ځینو یادونه کوو.

کمونسـتانو لـه حاکمېـدلو سره سـم د کمونیزم د نظريې عملي کول پیل کړل، او بیا یـې د دې په خاطر چې د شریعت اصـول او احکـام يې د خلکو له ژونده وېستلي وي کرار کـرار يـې په مختلفو بهانو او توطیو د خلکـو پـه شخصي- چارو او شرعي امورو کې لاسوهنه پیل کړه.

مثلاً: لومړی لاسوهنه چې دوئ د خلکو په شخصي امـورو کـې پیـل کـړه دا وه چـې د ښځو لپاره يې فقط ۳۰۰ افغانۍ مهر وټاکه، که

هر چا به د خپلې خوږ او یا لـوړ لپـاره تـر دې زیات مهر ټاکلی وو، هغه به د دوئ د قانون له مخې مجرم ګڼل کېده او دا پداسې حـال کـې چې د شریعت له مخې د مهر لپاره آخري حد ټاکل شوی ندی بلکې د جانبینو ترمنځ توافق ته پرېښودل شوی دی.

همدا ډول یې د بل فرمان په صادرولو د خلکـو د شخصي ـ ملکیـت او د زمکـو پـه قبضولو کولو پیل وکړ. که هر چا به لـه دیـرش جریبه زیاته زمکه درلوده ټولـه بـه حکومـت تـرې قبضـه کـړه. دولتـي ملکـي او امنیتـي مامورین به د یوه مارش په توګه هغو زمکو تـه لاړل، بیا به یې د زمکې مالـک پـه ډېـره ذلیلـه توګه راوست، ښځینه او نارینه خلقیانو به هلته اتڼونه او ګډاوې وکړې، د کلیو سپین ږیري به یې هم وګډول، له درې، څلورو مکاتبو به یې شاګردان راوستل، بیرغونه به یـې پـه لاس کـې ورکړې وو، سرې جامې به یې وراغوستي وې، ټولو به د (هورا) (هورا) نارو پـه وهلـو لـوړی خوشحالي وښوده، او وروسته به یې کـه کـوم چا د دوئ له ټاکلي حده زیاته زمکـه درلـوده نو له هغې به یې ۳۰ جریبه ور پرېښوده او نوره ټوله به یې ورڅخه مصادره او د همدې مالک پر دهقانانو او بزګرانو ور تقسیم کړه.

د یو چا شخصي ملکیـت پـه دې توګـه بل چاته ورکول د شریعت له مخې جـائز کـار نه دی. د اسلام سپېڅلی دین د هـر څـه لپـاره عادل نظام لري. که هر څوک هر څومره ډېـره زمکـه ولـري اسـلام یـې پـه زوره ورڅخـه د اخیستلو اجازه نـه ورکـوي، البتـه اسـلام بیـا د همـدې ډېـرې زمکـې پـه حاصـل کـې د مسکینانو خپلـه حصـه ټـاکلې ده. الله تعـالی فرمايي:

(وَالَّذِينَ فِي أَمْوَالِهِمْ حَقٌّ مَعْلُومٌ (24) لِلسَّائِلِ وَالْمَحْرُومِ (25)) [سورة المعـارج: ۲۴، ۲۵]

ژباړه: (او هغه خلک (هـم بـې صـبره او حرصـناکه نـدي) چـې پـه مـالونو کـې یـې (د زکات او صدقاتو په شکل کې) معلوم حق دی د فقیرو غوښتونکو او هغـو فقیرانـو لپـاره چې غوښتنه نه کوي).

الله تعالی د مالدارو په مال کې د نادارو خلکو لپاره معلوم حق ټاکلی چې هغه د عشر، سرسایې، زکاة او د صدقې نور مختلف حقونه دي. خو کمونستانو په دغـه طریقـه بانـدې نـه بلکې د کمونیزم د نظریـې مطابق لـه مالـدارو څخه کارګرانو ته ورکړه کولـه، او د دې لپـاره چـې د کـارګرې طبقـې خلـک د مالـدارو پـر وړاندې راوپاروي، نو له مالدارو خلکو څخـه بـه د هغـوئ شخصي ـ ملکیـت قبضـه کـاوه او داسې چاته به یې ورکاوه چې هغـه بـه یـې پـه شرعي لحاظ مالک نـه وو. کمونسـتانو دا کـار ځکه کاوه چې دوئ نه (اِله) مانه، نه یې د هغه دین او قران مانه، نه یې سنت پېژندل، او نه یې هم شریعت ته په درنه سترګه کتل.

اللـه تعـالی د زکـاة، عشر ـ، سرسـایې او صدقې په ټاکلو سره د مالداره او ناداره خلکـو تـر مـنځ نـور هـم د اخـوت، ورورولـۍ او صـمیمت فضـا پراخـوي، خـو د دې خـلاف کمونیزم لـه مالـدار څخـه پـه زوره د شخصي ـ ملکیت په اخیستلو او بیا هغه چاته په ورکولـو چې د دې زمکې لپـاره کـارکوونکي ټـاکلي شـوي وي، د مالـدارو او نـادارو تـرمنځ د دښمنۍ او خصومت فضا رامنتځه کوي.

کله چې کمونستانو د شخصي ـ ملکیـت د لغوه کولو په هدف پدې ډول اقـداماتو پیـل وکـړ، نـو متنفـذ، مالـداره او د زمکـو اصـلي مالکان د ټیټې طبقې پـه لاس ذلیـل او سـپک شول، چې دې کار په ټوله کې د کارګرې طبقې او د زمکـو د اصـلي مالکـانو تـرمنځ جنجالونـه، جنګونه او حتی وژنې رامنځته کړې.

دا چې مالداره طبقه محکومه وه، نو یې بهرنیو او همسایه هېوادونو ته یې هجرتونه پیل کړل. پـه هېـواد کـې جنګونـو زور واخیسـت، دهقانـان او غریبـان هـم د کمونسـتانو او بیـا وروسته د روسانو د وحشیانه بمباریو له لاسه د وطن پرېښودلو تـه اړ شـول چـې لـه املـه یـې زمکـې شـاړې پـاتې شـوې. د اوږدې مـودې جګړې له امله په هېواد کې زمکې بې خاونده شـوې، او د هېـواد او خلکـو اقتصـاد تـه نـه جبرانېدونکې ضربه ورسېده.

کمونستانو د خپل حاکمیت د بقا لپاره د ولـس پـه ځپلـو پیـل وکـړ. پـه دې برخـه کـې حاکم نظام د ډېرو لویو او بې رحمانه جرمونـو مرتکب شو چې ځیني یې د نمونې په توګه په لاندې ډول دي:

د کابل په ښار کې ولس د کمونستانو په خلاف راپورته شو، د الله اکبر نارې یې وهلې، او دا یې ویل چې پر خپله خاوره د کمونستانو تسلط نه غواړو، له کمونیزم څخه بیزاره یـو، او د خپلې خاورې آزادي غواړو. کمونستانو یـې پـر وړانـدې عکـس العمـل وښـود او د دې پاڅون ۵۰۰۰ ګډون کوونکي یـې ووژل چـې له امله یې د کابل جادې ټولې د ولسي خلکـو له شهیدانو ډکې شوې.

څه وخت وروسته په هرات کې خلکـو په پاڅون لاس پورې کړ، ویل مونږ له کمونیزم څخه بیزاره یو، نه د هغو ظلمونو زغم لرو چې کمونستان یې پر ولسي وګړو کوي، او نه هغـه الحـادي عقایـد منـو چـې کمونسـتان یـې پـر خلکـو تپـي، او نـه هـم د دغـه ډول نظـام د برداشت توان لرو چې په مکمله توګه د ولـس له اسلامي مـزاج سره پـه ټکـر کـې دی، مونږ

یــوازې د اســلام ســپېڅلی دیــن غــواړو. کمونیست نظام د دې خلکو پر وړانـدې هـم عکس العمل وښود، طیارې، ټانګونـه او نـور جنګي وسایل یـې راوسـتل او پـه دوو ورځـو کې یې نیږدې ۲۴ زره انسان لـه ووژل. داسـې هم پـېښ شـول چـې ژونـدي انسانان یـې لـه زمکي پورتـه کـړل او لـه فضـا یـې زمکـي تـه راوغورځول اوشهیدان شول.

د کمونستانو د تسلط په وخت کـې خـو به داسې ډېر پېښېدل چې په زرګونو روسان به پر یوه ولایت یـا ولسوالی ورغلـل او پـه یـوه ځـل بـه یـې پـه زرګونـو کسـان ووژل چـې د ساري په ډول یې څو لاندې پېښې یادوو:

د کنـړ د اسـعد اباد شـمال تـه لـه پلـه ورهاخوا د (کیرالې) کلی واقع دی، دې کـلي ته پرلاره د کونړ د سیند پر سر له پله لږ ور تېر په چپ طرف کې یوه سیمه چې اوس پکې د لرګیـو د خرڅولـو ځایونـه دي لـه دوو لویـو قبرونو لویې کلاوې راتاو دي. یو یې ۳۶ متـره اوږد او بل یې ۵۲ متره اوږد دی. مـا (لیکـوال مولوي عبدالهادي مجاهد) ته د دې قبرونو په اړه د دېپېښې عیني شـاهد د (کیرالـې) د کـلي اوسېدونکي مامور (سید احمد) چې زه ورسره د همدې قبرونو پر سر ولاړ وم دا واقعه داسې بیان کړه: ((... په هغه وخت کې مجاهدینو لـه حکومـت سره تـر جکـړې وروسـته د کیـرالي کلي تـه پنـاه راوړه او پـټ شـول، د کنـړ والي کلي ته راغلی او امر یې وکړ چې د کـلي ټـول خلـک دي را غونـډ شي تـر څـو والي ورسره خـبرې وکـړي. خلـک ټـول دې سیمي تـه راغلل، زه هغې وني (یوې وني تـه پـه اشـاره) سره نـژدې د ښـځو پـه مینـځ کـې پـټ وم او صحنه مې له نژدې په خپلو سترګو لیدلـه. کلـه چې کمونستان مطمئن شول چې ټـول خلـک راغلل، نو پوځیانو ته یې د خلکو دویشتلو امر

وکړ، پوځیانو په بې رحمۍ پر بې وسلې خلکو یې ډزې پیل کړې، او په یـوه څـو لحظـو کـې یې یوولس سوه او درې اویـا (۱۱۷۳) تنـه پـه شهادت ورسول)).

د لغمان د ولایت د الیشنګ ولسوالی د نجیلو د کلا په سیمه کـې کمونسـتانو د شـپې لخوا تقریبا ۶۰۰ ولسي خلک راټول کـړل، پـه بلډوزرونو او ماشینونو باندې یې کنـدې ورتـه و ایستلې او ټول یې ژوندي تر خـاورو لانـدې کړل. دا ټولې واقعې د استاد محمد زمان مزمل د (أسـباب الإحـتلال و أبعـاد المقاومـة في افغانستان) په کتاب کې هم ثبت دي.

همدارنګه به کمونستانو په ښارونو، کلـو او اطرافـو کـې تقـواداره، متـدین او دینـداره خلک چې یا به یې ږیره پر مخ درلوده، یـا بـه پنځه وخته لمانځه ته تلل، او یا به یـې کـورنۍ د دینداری تاریخ درلود په زندانونو کې اچول او شکنجې به یې ورکولې. کمونستانو به بې له محـاکمې خلـک وژل او د بتخـاک او یـا د پلچرخي خوا ته د پولیګون په سیمه کې به یې په ټوپکو ویشتل، او تر وژلـو وروسـته بـه یـې خاورې پر وراړولې. په ځینو حالاتو کـې بـه یـو دوه لـه خـاورو ژونـدي هـم را وتـل. زمـا (عبدالهادي مجاهد) څو کاله مخکې د لغمان د الیشـنګ لـه یـوه داسـې مجاهـد سره کاتـه وشول چـې د مـرګ لـه کنـدي بېرتـه ژونـدی راوتلی وو. هغه ته بـه د سیمې خلکـو د (ملا شهید) نوم اخیست. هغه خپله ټوله واقعه راتـه بیان کړه. هغه راته وویل: ((کله چې یـې ډزې راباندې وکړې، خاورې یې راباندې واړولې او را څخه ولاړل، ما ځان ژونـدی احسـاس کـړ، خاورې مې له ځانه واړولې ومې کتل چـې زخمي هم نه وم، له کندې راووتم او یوه کلي ته مې پناه یووړه).

پـه دغـه ډول بـه کمونسـت دولـت پـه زرګونـو او پـه لسـګونو زره افغانـان ووژل. خلک به یې د اخواني، ملا او د انقلاب ضـد عناصرو په نامه نیول، زندانونو ته به یې اچول، او په شهادت به یې رسول.

کمونستانو په افغانستان کې د مسلمان ولس د عقیدې، شریعت او معنوي ارزښتونو سپکاوی وکـړ، او د خلکـو د دینـي هویـت د مسخ کولو اقدامات یې تـرسره کـړل. د هېـواد ځوانان به یې په زوره د مجاهدینو پـه خـلاف جګړې ته سوق کول چې لـه همـدې املـه بـه ځوانان د حکومت د تسلط له سیمو وتل، چې په نتیجه کې یې کلي له ځوانانو خالي شول او د هجرت لار یې ونیوله.

پـه ۲۰۱۳م کـال کـې د سـپتمبر پـه ۱۹ تـاریخ د هالېنـډ لـویې څـارنوالی د شـاوخوا پنځه زره کسانو یو لست خپور کړی دی چـې په ۱۹۷۸ او ۱۹۷۹ م کلونـو کـې پـه افغانسـتان کې د هغه وخت د استخباراتي ادارې (اګسـا) له خوا وژل شوي ول. دې ادارې د امـان الله پـه نوم د یو افغان پنا غوښتونکي پـه اړه د څېړنـو پـه بهیر کې چې یو مهال د (اګسا) نومې پلټـونکې ادارې مشر وو، دا لیسټ تر لاسه کړی و.

امان الله په ۱۹۹۳م کال کـې هالینـډ تـه پنا وړې وه. نوموړي د هالېنډ د کډوالو ادارې له چارواکو سره په مرکـه کـې منلـې وه چـې د اګسـا د تحقیقـاتي څـانګې مشر-وو او د هغـو کسانو پر اسنادو یـې لاسـلیک کـړی وو چـې باید اعدام شي.

نوموړي په خپلـو خـبرو کـې ویـلي ول چې دا یې د دندې برخه وه او که یې دا کار نه کـاوه نـو پـر دومـره لویـه او حساسـه دنـده نـه شوای ټاکل کېدای. په تر لاسه شـویو اسـنادو کـې دا کسـان بنسـټپاله مسـلمانان، متفکـرین، محصـلان، د عامـه خـدمتونو مـامورین، پـوځي

افسران، دکانداران او اشرار بلل شوي ول. د دغو شهیدانو وارثینو او خپلوانو یې څو دیرش کاله وروسته د خپلو شهیدانو فاتحې واخیستې.

کله چې د کمونستانو د الحادي عقایدو، مظالمو او وحشتونو پر وړاندې د مجاهدینو په شکل افغان ولس راپورته شو نو دوئ ورته د اشرارو نوم ورکړ چې وروسته بیا د دوئ په مطبوعاتو او رسنیو کې مجاهدینو ته رسمي نوم وګرځېده.

کله چې روسان راغلل نو بیا به روسانو او افغاني کمونستانو په شریکه خلک بمباردول او وژل. دوئ به پوره کلي ورانول او او اوسېدونکي به یې وژل. ځوانان، سپین ږیري، ماشومان، ښځې، ناروغان، ضعیفان، حیوانات او هر څه به چې په مخه ورتلل له یوې مخې به یې فېرونه پرې کول او وژل به یې. یو ځل روسان او کمونستان زموږ خپل کلي ته راداخل شول او چې کله یې له بل سره وتل نو ۵۲ کسان یې وژلي ول.

روسانو او کمونستانو په ټول افغانستان کې پراخ وحشتونه او او زړه بوږنوونکي جنایات تر سره کړل، د هغه جنایاتو شاهدان لا تر اوسه ژوندي دي چې د ترسره شویو جنایاتو کیسې باید ورځخه ولیکل شي او د تاریخ په حیث خوندي شي.

ما ته یو وخت په پېښور کې د لغمان د ولایت د مرکز اړوند د (برې ډوبې د ملایانو) د کلي اوسېدونکي یوه مجاهد قومندان قدرت الله چې په پاچا مشهور و د روسانو د ظلمونو یوه پخپلو سترګو لیدلې واقعه داسې بیان کړه: ((یوځل د (شلټک) سیمې ته د روسانو قوه راغله، موږ ورسره په جنګ بوخت شوو، وروسته نور روسان هم د هغوئ مرستې ته راغلل، موږ غره ته وختو، دوئ هلته هم راپسې راغلل خو ماتې یې وخوړه او بېرته کلي ته پر شا شول. څه کسان یې هم وژل شوي ول، په جنګ کې تر ماتې خوړلو وروسته کلي ته ور وګرځېدل او هلته یې بد حال شروع کړ، زښت ډېر فیرونه یې وکړل او له کلي لوګي پورته شول او یوساعت وروسته له هغه ځایه هم لاړل. موږ ورځ او شپه په غره کې تېره کړه، څه کسان مو شهیدان او زخمیان شوي ول، کله چې سهار شو غوښتل مو له کلي څخه څو کټونه راوړو او له غره څخه خپل زخمیان او شهیدان راکښته کړو، زه له ځینو نورو مجاهدینو سره له غره راکښته شوم، خو کله چې کلي ته راغلم هېڅوک مې پیدا نه کړل. پر لاره کې مې یو کس د غنمو په کرونده کې ولید چې په زخمي حالت کې پروت و او زګیروي یې ختل، پوښتنه مې ترې وکړه چې څه حال دی؟ ځواب یې راکړ چې خبر نه یم، په کلي کې پوښتنه وکړه. کلي ته چې ورغلم او کورونه مې وکتل هېڅوک ورکې نه ښکارېدل. په هغه وخت کې عادت داسې وو چې کله به روسان کوم کلي ته ورغلل نو ټول ماشومان او ښځې به له وېرې د کوم سپین ږیري او یا سپین سرې په کور کې سره راټول شول تر څو یې هم یو پر بل زړه ډاډه وي، او هم د روسانو له لوري له بې عزتۍ وراړولو په امن وي. روسانو به په هغو وختو کې د کلي د خلکو تورسرو ته بې عزتۍ هم ور اړولې. موږ همداسې په کلي کې روان وو تر دې چې یو کور ته ورنژدې شوو او د سوځېدلو او پخو شویو غوښو بوی مو تر پوزې شو. کور ته ورننوتو چې کتل مو د کلي ماشومان، ښځې او سپینږیري چې د همدې کور په لومړي منزل کې سره راټول شوي ول لومړی روسانو وژلي وو او بیا یې کور ته اور هم وراچولی وو. د کور تر سوځېدلو وروسته ټول انسانان همدلته پاخه شوي ول، او دوهم چت هم ورباندې له پاسه راغورځېدلی وو. له نورو مجاهدینو سره به مو چې له جسدونو خاورې اړولې او د کوم چا لاس یا پښه به مو چې پیدا کړل نو چې راکش به مو کړل هغه به پاخه شوې وو، د لاس یا پښې هډوکی به یې راووت او نور به هلته ښخ پاتې شو. هېڅ د راوېستلو امکان یې نه وو، همداسې مو پر ټولو کسانو د کور دیوالونه راونړول او همدلته مو د یوه اجتماعي قبر په حیث تر خاورو لاندې کړل چې وروسته یې شمېر معلوم شو چې ۷۳ کسان ول)).

د ۱۳۶۴ کال د حمل په ۲۵ تاریخ د لغمان د قرغیو ولسوالۍ ته روسان او ورسره کمونستان ورغلل او په یوه ورځ یې درې زره کسان ووژل. د دې درې زرو کسانو جنازې په یوه ورځ پرتې وې چې د ښخولو یې څوک نه ول.

روسانو او کمونستانو دې ته ورته لوی لوی جنایات د هېواد په مختلفو نورو ولایتو کې هم ترسره کړل. دا ټول ظلمونه یې په دې نیت ترسره کړل که ګوندې دا ولس به له جهاده لاس واخلي، د دوئ خبره به ومني، دوئ به دا هېواد تسخیر کړي او دلته به د دوئ عقاید او نظریات عملي شي، او بیابه له دې لارې تودو اوبو او د خلیج تېلو ته لاره پیدا کړي.

دې جنایاتو دومره زور واخیست چې نور یې خلکو زعم نه درلود. خلکو خپل فصلونه، زراعتونه، کورونه او دارایۍ پرېښودې او مهاجر شول. د ۵ میلیونو په شاخوا کې خلک مهاجر شول چې څوک یې پاکستان ته لاړل، چا د ایران لاره ونیوه، څوک سعودي ته کډه شول، او څوک د نړۍ نورو هېوادونو حتی اروپا او امریکا ته کډوال شول.

روسانو او کمونستانو یو بل ستر جنایت هم تر سره کړ او هغه دا چې د دې لپاره چې مجاهدین په کلیو، بانډو، لارو او سیمو کې

گشت او گذر ونه کړای شي په هېواد کې يې په میلیونونو بمونه وکړل او یا یې له هوا وشیندل چې لا تر اوسه له خلکو قرباني اخلي. دغو بمونو د لکونو افغانانو ژوند واخیست، او لکونه نور يې بې پښو، بې لاسو، بې بینایي او په بلابېل ډول معیوب کړل.

## له کمونستانو سره د ځینې جهادي تنظیمونو د ائتلافونو لوی جنایت:

د کمونسنستانو د ټولو جنایاتو له تر سره کېدلو سره سره د افغانانو جهاد متوقف نه شو، بلکې لا يې زور واخیست چې په نتیجه کې يې لومړی سرحداتو، وروسته ولسوالیو او وروپسې ولایتونو یو په بل پسې سقوط وکړ چې له ۱۴ کاله قربانیو او جهادونو وروسته يې روسان او کمونستان له هېواده وشړل او دا خاوره يې د دوئ له حاکمیته پاکه کړه. خو متأسفانه چې له دې ټولو جهادونو او قربانیو وروسته هم افغانان د یوه صالح اسلامي حکومت خاوندان نه شول، او د دې پرځای چې فاتحین یو اسلامي نظام قائم کړي په خپلو کې سره د حکومت پر سر په جنګونو کې لتاړ شول، او بېرته يې یو د بل په خلاف په مختلفو بهانو، قناعتونو او دلیلونو له کمونستانو او بېلابېلو نورو ډلو سره ائتلافونه وکړل، او پخواني کمونستان، د پخواني پوځ جنرالان، ملیشې، لوړ پوړي چارواکي، افسران او سیاستمداران يې د هغوئ په خلاف له اوږدې جګړې وروسته بېرته د خپل ځان ملګري کړل.

کله چې کمونستانو سقوط وکړ په هغه وخت کې افغانستان ۴۰۰ جنګي، ترانسپورتي، جېټ او استکشافي طیارې او په زرګونو ټانګونه، توپونه او پوځي نقلیه وسائط درلودل. دا ټولې طیارې او نور وسائط یا دې تنظیمونو په خپلمنځي جګړو کې له منځه یوړل او له کاره ولوېدل، او یا د هغه وخت د قومندانانو لخوا ټوټه او بیا پر نورو هېوادونو د کباړ په بیه خرڅ شول. د ټانګونو او نورو وسایلو په ملیونونو ټنه اوسپنه په قاچاقي توګه نورو هېوادونو ته یووړل شوه، او په ناچیزه قیمت خرڅه شوه. دا هغه جنایات ول چې د مجاهدینو تر نامه لاندې خودخواهو او نفس پرسته تنظیمیانو تر سره کړل، نو ځکه خو الله تعالی هم له دې افتخاره محروم کړل چې د دوئ په لاس دې اسلامي نظام قائم شي. الله تعالی په دنیا دا سزا ورکړه چې نن يې د کفر په صف کې ودرل، او دا دی اوس د هغو مسلمانانو په خلاف جنګېږي چې مخکې به يې ورځخه د دفاع ناري وهلې. اوس کافر ماتې خوري او ځي، خو دوئ وروپسې چیغې وهي چې مه ځې! موږ چاته پرېږدئ؟!.

کمونستان تر خپلې ماتې وروسته بېرته په ډېر ماهرانه شکل یا په ځینې تنظیمونو کې ورداخل شول او یا غرب ته لاړل، هلته يې له غربیانو سره کار شروع کړ، هغوئ هم بېرته له ځان سره راوستل، او د وزیر، مشاور، د مؤسسې د مشر او په نورو نومونو يې دلته په کار وګمارل او بیا يې پر دې مظلوم ولس مسلط کړل.

کمونستان د دې هېواد د ټولو هغو جنایاتو، قتلونو او ورانیو مسؤولین او پیل کوونکي دي چې د دوئ له واکمنېدو وروسته شول، ځکه همدا کمونستان ول چې د روسانو په ملاتړ او امر يې افغانستان له تباهۍ سره مخ کړ تر څو روسانو ته دا فرصت برابر کړي چې لدې لارې د هندد سمندر تودو اوبو، د خلیج تېلو او له غرب سره د ټکر د جبهې جوړلو ته لاره پیدا کړي.

کمونستان تر خپلې ماتې وروسته که په سیاسي او حکومتي لحاظ له منځه ولاړل، خو لا تر اوسه هم په فکري لحاظ پاتې دي. موږ په تېر جهاد کې د دعوت، تربیې، فکر جوړلو او د عقیدې د سمولو جانب ته ډېره توجه نه وه کړې او یوازې مو پر نامنظم عسکري عمل اکتفا کړې وه. موږ بې له چاڼولو او اسلامي روزنې هر ډول خلک د جګړې لپاره مسلح کړي ول، تر دې چې په ځینې التقاطي تنظیمونو کې به چې کله د کومې جبهې د لګښتونو پیسې ورکول کېدې نو د چرسو لګښت به هم ورکول کېده. نتیجه يې دا شوه چې هم جهادي صف بدنام شو، او هم اهداف تر لاسه نه شول.

کمونستانو له موږ څخه له بلې لارې خپل انتقام واخیست، د شهیدانو، کونډو، یتیمانو او ټول مجاهد ولس ارمانونه مو نیمګړي پاتې شول. په عسکري لحاظ کمونستان له منځه ولاړل، خو په عقیدوي او فکري لحاظ موږ کمونستان مسلمان نه کړای شول. تر اوسه داسې پېښې نه شول چې کوم کمونیست دې علني توبه وېستلې وي او ویلي دې وي چې پرون زه د کمونیزم د منلو له امله کافر وم، او اوس مسلمان شوم. هغوئ پرون یو ډول کافر ول، او د یو ډول یرغلګر کافر خوا يې نیولې وه، نن بل ډول کافر دي، او د بل ډول یرغلګرو کافرو ملګري دي. پرون يې روسان راوغوښتل او دا وطن يې وربانډې وران کړ، نن يې اورپایان او امریکایان راوغوښتل او دا وطن ور باندې ورانوي.

که اوسني مجاهدین (طالبان) بیا هم د پخوانیو تنظیمونو غلطي تکرار کړي، او د (ولاء او براء) د عقیدې مطابق عمل ونه کړي، نو کېدی شي چې الله تعالی مه کړه دوئ به هم د پخوانیو تنظیمونو په برخلیک اخته شي، او همداسې لکه نن چې پروني مجاهدین د بل کفر تر څنګ ولاړ دي، دوئ به هم بېرته

له هغه چا سره يوځای کېږي چې په کلونو کلونو ورسره جنګېدلي دي.

پکار ده چې مجاهدين له اوسني دښمن سره د اسلام مطابق چلند وکړي، لومړی دعوت ورکړي، منطق ته يې ور وبولي، شبهات يې ورحل کړي، او که راونه ګرځېدل نو هغه چې د نفاق حد ته رسېدلي منافقين دي وبلل شي، هغه چې د ارتداد حد ته رسېدلي هغوئ ته د مرتدينو په سترګه وکتل شي، او هغه چې تېروتي او د نافهمی له امله له دښمن سره يو ځای شوی دي هغوئ دې وپوهول شي، او د دښمن له صفه دې د راوتلو فرصتونه دې په لاس ورکړل شي. او هغه چې دعوت نه مني د دښمن په نظر دې ورته وکتل شي. خو د هغوئ له اولادونو سره دې مهرباني وشي، کتاب دې په لاس کې ورکول شي، د اصلاح او اسلامي تربيې امکانات دې ورته برابر شي، تر څو په فکري او عقيدوي لحاظ په پلرونو پسې ولاړ نه شي. دا ټول يوازې په ټوپک نه کېږي، بلکې په جهادي صف کې دې د ټوپک د شرعي استعمال تر څنګ دعوت، علم، فکر او د قناعت ورکولو وړتياوې تقويه شي.

کمونستانو د خپل حاکميت په وخت کې په ډېرې بې رحمۍ په بېلابېلو ډولونو افغانان ووژل. په لاندې لړ کې د ځينې هغو سياسي او جنايي قتلونو يادونه شوې چې د کمونستانو د رژيم په دوران کې ترسره شوي دي:

۱۳۵۷، حوت، ۲۴مه: په هرات کې د ولسي پاڅون د ځپلو په ترڅ کې د ۲۴ زره مسلمانو هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۵۸، عقرب، ۳مه: په داخله وزارت کې د ۱۲ زره وژلو شويو هېوادوالو د لست ځړول.

۱۳۶۴، حمل، ۲۵: په لغمان قرغه يو کې د درې زره بې ګناه هېوادوالو وير جن ډله ايز شهادت.

۱۳۵۸: په پوځ کې د کودتا په تور د ۲۰۰۰ مسلمانو صاحب منصبانو ډله ايز اعدامونه.

۱۳۵۸، حمل، ۳۱ مه: د کنړ په کېراله کې د تر ۱۰۰۰ ډېرو هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۶۴، حمل، ٦ مه: په کندز کې د ۹۰۰ مسلمانو هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۵۹، اسد، ۲مه: په ميدان وردګو ولايت په چک او سيد اباد ولسواليو کې د تر ۸۰۰ څخه د ډېرو مسلمانو هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۵۸، جدي، ۲۵مه: د کندز په چهاردره کې د ۷۵۰ هېوادوالو ډله يزه وژنه.

۱۳۵۸، دلوه، ۱٦مه: د کندز په امام صاحب کې د ۷۰۰هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۵۸، سنبله، ۱۵مه: د لغمان عليشنګ په قلعه نجيل کې د ٦۵۰ هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۶۴: د ميدان وردګو ولايت په نرخ او ميدان کې د درې برېدونو په اوږدو کې د ٦۰۰ هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۶۳، حوت، ۲۲ مه: په قره باغ او شکردره کې د ۵۰۰ هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۶۳، دلوه: په کندزو چهاردره کې د ۴۲۵ هېوادوالو ډله ايزه وژنه

۱۳۵۸، دلوه، ۲۱مه: په دشت ارچي کې د ۲۵۰ هېوادواله ډله ايزه وژنه.

۱۳۶۲، قوس، ۱۸مه: په غزني کې د ۲۵۰هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۵۹، جدي، ۱۹مه: په خان اباد کې د ۲۰۰هېوادوالو ډله ايزه وژنه.

۱۳۵۷، د روژې مياشت: په بګرام هوايي ډګر کې د ۲۰۰ صاحب منصبانو ډله ايزه وژنه.

۱۳۵۹، جدي: پر خان اباد د هاوان فيرونو په واسطه د ۲۰۰ څخه د ډېرو هېوادوالو ټپي کول او شهيدانول.

۱۳۶۳، سنبله، ۲۸مه: په بغلان کې د بمبارد له امله د ۱۵۰ ځايي اوسېدونکو شهيدانول.

۱۳۵۸، جوزا، ۸ مه: د پوهاند غلام محمد نيازي، انجنير سيف الدين نصرتيار او استاد غلام رباني عطيش په شمول د اسلامي نهضت د ۱۳۵ غړيو شهادت.

۱۳۵۷، حوت: د خوست په ۲۵مه فرقه کې د ۱۳۳ صاحبمنصبانو ډله ايزه وژنه.

۱۳۵۸، جوزا، ۸مه: د څرخي پله په زندان کې د اسلامي نهضت د ۱۱۷ غړيو شهادت.

۱۳۶۳، دلوه، ۱۰مه: په ننګرهار کې د ۸۰ مسلمانو هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۶۳، سنبله، ۲۱مه: په نورستان کې د ٦۷ هېوادوالو شهادت.

۱۳۵۸، جوزا، ۱۴مه: په څرخي پله زندان کې د د غازي سيد اکبر په مشرۍ د اسلامي نهضت د ۴۵ غړيو شهادت.

۱۳۶۱، جدي، ۲۵مه: په هرات کې د ۴۰ هېوادوالو ډله ايز شهادت.

۱۳۵۹، ثور، ۹مه: په کابل کې د خويندو د پاڅون په ترڅ کې د درېو خويندو هرې يوې ناهيد، وجيبه او جميله په ګډون د تاريخ تر ټولو مظلومانه شهادت.پای

# دسپین کاروان سرلارى




## سرلارې کتاب

سید سعید

سرلارې کتاب په جهادي ادب او تاریخ کې خورا لویه لاسته راوړنه ده، د سرلاري ادبي او فرهنګي ارزښت په دې کې دی چې په معیاري ژبه لیکل شوی او په ښه صحافت چاپه شوی دی. داسلامي امارت د پنځوسو تنو سرلارو تشخص، تعلیم، سیاسي، پوځي او ټولنیز ژوند قلم بند کول هم داوس لپاره ډیر ارزښت لري او هم په تاریخي لحاظ لویه بریا ده.

دښمن له پیریو راهیسي په مختلفو نومونو او نیرنګونو داسلامي اوجهادي تنظیمونو اوقیادتونو په اړه ډیر زهر پاشلي او همدا لړی یې اوس تر بل هروخت ډیره په درز روانه ده. داسلامي امارت دمشرتابه پر ضد خو ددښمن پروپاګند دورځې خبره ده. خو سر لاري کتاب دمکار دښمن پر مخ داسي کلکه څپېړه ورکړه چې تر ډیره به یې دمخ تور او شنه خاپونه پاک نشي.

پر تاریخي او ادبي ارزښت سربیره د سرلاري بله ځانګړتیا داده چې، د دغه کتاب دمطالعې پرمهال ځای ځای د سپین کاروان د سرلارو داسي نیک صفات او ښایسته اخلاق د لوستونکي مخته راځي چې، د باطني او ټولنیزې اصلاح لپاره خوار نادر درسونه دي، د بېلګې په توګه په دغه کتاب کې دسرلارو پر جهادي کارنامو سربیره، اخلاص، تقوی، ترحم، عاجزي، مسکنت، د بیت المال سره انتهایي احتیاط، دعامه شتمنیو ساتنه او دولس د ټولنیزو حقونو احترام یو په بل پسې ذکر شوي دي. د سرلاري د لوست پر مهال لوستونکي داسلامي امارت دمشرتابه اخلاص، ایثار، شجاعت، غربت او له ګران هیواد او داسلام له مبارک دین سره ژوردرد او بې پایه مینه په ډیر ښه ډول احساسولی شي.

دسر لارو دحمیده اخلاقو، سترپاوواو فداکاریو دمطالعې پر وخت له عجیب کیف سره مخامخ شوم، د هجرت په یوه سپېره جونګړه کې مې ډېره وهلې وه، خو اروا مې دحجاز، شام او عراق پر فتحو او د قیصر او کسری پر نسکورو شوو ماڼیو الوت کاوه. هلته مې دانحصرت صلی الله علیه وسلم دمبارکو اصحابو او نورو غازیانو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین، فداکارۍ، لوړې او له دین څخه ځاریدنه مشاهده کوله اودلته مې له خیر القرون څخه ډیر وروسته (پنځلسمه پیړۍ) کې داسلافو پر پل دتللیو سر لارو د ژوند حالات تر نظر تېریدله. دسلف او خلف د قربانیو او مینې نادر امتزاج او مشابهت و.

سر لاري کتاب مې له سره تر پایه په په خورا خوند او شوق ولوست، دکتاب زیاته برخه د وتلي لیکوال او مورخ قاري سعید صاحب لیکنې دي، دقاري صاحب لوړ ادبي ذوق او غښتلي قلم کتاب بیخي ډیر ښکلی کړی دی.

د سرلاري کتاب په اړه که مې څه هم څو کرښې وکښلې، خو ددې کتاب تاریخي، ادبي، جهادي او دټولنیزې اصلاح ارزښت او موثریت ته کما حقه حد نشم ټاکلای. دجهادي ادب اوتاریخ د لا بډاینې لپاره اړینه ده چې، دسرلاري کتاب نور جلدونه هم دامکان ترحده ژر ترتیب او چاپ شي او بله داچې دجهادي سنګر دلیکوالو دمقالو ټولګې هم دچاپ په زیور ښایسته او لیکنې یې د ضایع کېدلو له خطره وژغول شي.

## دسپین کاروان سرلاري (کتاب) لنډه ارزونه

لیکوال عاکف مهاجر

د افغانستان اسلامي امارت د مخکښو او مشهورو شخصیتونو د ژوند لیکونو اړوند ((د سپین کاروان سرلاري)) په نوم کتاب چې د قاري عبدالستار سعید صیب په قلم لیکل شوي او د پنځوس تنو امارتي مشرانو سوانح پکې راټول شوي ډیر مهم او ځینې نالوستل شوي حقائق او تاریخي واقعیتونه پکې راغونډ شوي چې د ټولنې لپاره تر بل هر څه اړین بلل کیږي.

مخکې لدې چې د کتاب کتنې ته ورشم د کتاب د لیکوال په اړه دومره ویلی شم چې په اوسني معاصر دور کې قاری عبدالستار سعید صیب تر بل هر چا د اسلامي امارت د تاریخ به اړه کره او ښه معلومات لري په خاص ډول دلته بیا د هغو خلکو د خولې خبرې رایوځای شوي چې د سترګو لیدلی حال او تر مخ تیر شوي معلومات یې شریک کړي.

د کتاب مرتب د دغه کتاب په پیلامې کې د کتاب د اهمیت په اړه لیکلي چې «که مونږ داسلامي مبارزو تیر څوارلس سوه کلن بهیر وڅارو نو وینو چې د هر دور مسلمانانو د خپل مهال مهم تاریخي وقائع ثبت کړي. د خپل وخت د علماوو، فقهاوو، حفاظو، خلفاوو، فاتحینو او نورو تاثیر گذاره اشخاصو تذکرې یې لیکلي او حتی د هغوی د ژوند ډیر جزئي خو مفید اړخونه یې په پوره امانتدارۍ ثبت کړي چې اوس نه یوازې د اسلامي فرهنگي ذخیرې مهمه پانگه بلل کیږي بلکې د لوستونکو د عبرت او استفادې منابع هم دي».

زما په نظر د مشاهیرو پیژندل تر بل هر څه اړین دي تر څو راتلونکی نسل مو د هغوی د کارنامو څخه په گټه اخیستنه همداسې میړانې او کارنامې ترسره کړي هغه څوک وپیژني چې د مؤمن اولس او هیواد په گټه یې څه کړي.

د تاریخ په اوږدو کې ځینې داسې هستی وي چې د هغوی تاریخ باید د سرک تر غاړې په هره لوحه ولیکل شي تر څو یې له نوي نسل سره د تعارف لړۍ جاري وساتل شي.

په دغه کتاب کې د څلور طالب مشرانو یا زعیمانو امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رح، شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور تقبله الله، د طالبانو د واکمنۍ د مهال رئیس الوزراء ملا محمد رباني او دطالبانو د وخت د دفاع وزارت وزیر او د واکمنۍ له ړنگیدلو وروسته یې د ملا محمد عمر مجاهد رح نائب شهید ملا عبیدالله تقبله الله د سوانحو تر څنگ د ۴۶ نورو مشرانو ژوند لیکونه نشر-شوي چې ډیر اړین او ضروري وو.

له یاد کتاب څخه د طالبانو د تحریک ښه درک کیږي، ځکه د یو تنظیم او تحریک تگلاره او کړنې د هغوی له سرلارو ښه درک کیږي دا چې کتاب کې ټول د داسې خلکو او مشرانو ژوند لیکونه نشر-شوي چې د تاریخ په اوږدو کې یې ساری ډیر کم لیدل کیږي همداسې ښکاري چې د دغه تحریک په خیر به تاریخ کې ډیر کم داسې نظامونه تیرشوي وي چې په دغه باندې د نړۍ له لر او بر څخه اسلامي کدرونه او عام مسلمانان گواهي ورکوي او د دوی مشر یوه بې ساري تاریخي څېره بولي چې له خیر القرون وروسته به داسې څېره ډیره کمه تیره شوې وي.

د فرهنگي کمیسون مشرانو او خاصکر قاري سعید صیب ته د دغه زیار زیات زیات اجرونه غواړم چې زمونږ د هستیو تاریخي کارنامې او نومونه یې د تل لپاره زمونږ نوي نسل ته روښانه کړلې او د دغه بیساري اقدام مبارکی ورته وایم له ټولو فرهنگپالو ورونو څخه غواړم چې د هرې سیمې خپلو نومورکو اتلانو رنگین تاریخ راتلونکي نسل ته روښانه وساتي.

اجرکم علی الله

## د کلونو ارمان

رائد

دا یو ښکاره حقیقت دی چې دمگړۍ ډېری قلموال د کولنگ دنده پر مخ وړي او د اذهانو ړنگولو ته گمارل شوي، ډېری یې د حلال او حرام پرته په قلم رزق گټي، معیارونه او ارزښتونه یې ناڅرگند دي، د پیسو په زور د قلم نوکې پلوري -تاریخونه ړنگوي" سپینو ته تور او تور ته سپین وایي" او په مقابل کې یې څو ډالر تر لاسه کوي.

هو! داسې قلموال هم شته چې خپلې گوتې یې وینې او قلم یې تاند ساتلی. کتابونه لیکي، مجلې لیکي، مقالو پسې مقالې لیکي او مقابله کوي. چې "دسپین کاروان سر لاري" یې یوه ښه او ښکاره بېلگه کېدای شي.

چې د تاریخ پر سپین کاغذ یې د راتلونکي نسلونو د قضاوت لپاره دغه په زړه پورې تاریخي اثر چې د اسلامي امارت مطرحو او مخکښو اتلانو ژوند لیکونه او کارنامې یې په خورا دقت او امانت دارۍ سره د تاریخ حافظې ته سپارلې؛ ترڅو راتلونکي نسلونه یې د دې سترو قربانیو او بې بها خدمتونو څخه زده کړه وکړي.

له کلونو راهیسې راسره په زړه کې دا یو ارمان و، چې کاش داسې یو څوک را ولاړ شوي وای او داسلامي امارت د تاریخ د یو مهم پړاو په تړاو یې ښه په امانت دارۍ سره څه لیکلي وای. چې لله الحمد دا دی نن مې د تېرې ارمان تنده "د سپین کاروان سرلاري" پر لیکلو او چاپ کېدلو باندې خړوبه شوه. له الله تعالی څخه د اسلامي امارت فرهنگي کمیسیون او درنو خپلواکو لیکوالانو ته اجر عظیم او د لا زیاتو خدمتونو توفیق غواړم. خدای دې وکړي چې تل مو په داسې تاریخي اثرونو تنده ماته کړي او د اسلامي امارت د أمراوو په باب ډېر څه نالیدلي او ناویلي په خورا امانت دارۍ سره راټول او د تاریخ حافظې ته یې وسپاري.

په پای کې د اسلامي امارت له قلموالو مجاهدینو "لیکوالانو "څخه د زړه له کومې مننه کوم چې تل یې د ازادۍ او خپلواکۍ په لټه کې خپلې سترې گوتې نځولي او د اسلامي نظام لپاره یې په سپین کاغذ د خپل سپیڅلي قلم رنگ په پوره امانت دارۍ سره تویې کړی.

خدای د نور دغه سپین سپیڅلی کاروان نه کموي، تل دې وي د سپین کاروان سرلاري.

# شهید مولوي احمدالله "همام"

عاکف



**پېژندنه:**

شهیدمولوي احمدالله "همام"دالحاج مولوي نظرګل صاحب ځوی او دحاجي قلم الدین مرحوم لمسی او دمور له طرفه دمشهور دیني ربښتیني عالم او مجاهد، شهید الحاج مولوي فضل الحق" رحمه الله "چې مشهور په ملاحسن قلعه اخندزاده باندي وو، لمسی وو.

په کال 1362 هجري شمسي کې دمولوي صاحب نظرګل په دینداره، مجاهده اودین پالونکې کورنۍ کې یې دې فاني دنیا ته سترګې و غړولې.

شهید مولوي احمدالله همام لا دوه کلن وو چې په ګران هیواد روسي ښکیلاککرو ناروا اووحشي یرغل وکړ،

د همام کورنۍ هم دنورو دهیواد والوپه څېر دالهي حکم په بناء له خپل کلي او وطن څخه د هجرت په هدف وخوځېدل او داسلامي انقلاب دحرکت په کیمپ (جهادکلي) کې یې له نورو مهاجرینو سره یو ځای د مهاجرت زندګي شروع کړله.

**زده کړه:**

شهید همام [تقبله الله ﷻ] ابتدائي زدکړه په خپل کور کې له خپل مشفق اومحترم والد څخه تر سره کړې او همدا شان یې د نوموړي کیمپ په (لیسه عالیه محمدیه) کې ترشپږم ټولګي پوري عصري زده کړې ترسره کړې.

داچې علمي کورنۍ سره نسبت درلوداو نوموړي هم له وړکتوب څخه له دیني زدکړې سره زیاته مینه درلوده

نوپه همدي بنیاد یې په 1995 میلادي کال کې کورني ژوند ته شا او د دیني زده کړو په لوی سفر یې شروع وکړه. چې د پېښور په شاوخوا پرتو سیمو کې: (خیراباد، اضاخیل، باغبانان، او تهل کې له خپلو افغاني مشهورو علماءکرامو څخه دیني زدکړې ترسره کړې.

بعضې مشهوراستاذان یې:

۱ استاذالحدیث الشیخ مولوی عبدالغني صاحب،

۲ استاذالحدیث الشیخ مولوی معلم جان صاحب

۳ استاذالحدیث الشیخ مولوی عبدالمتین (فیاض) صاحب

۴ ماهرالفنون، مولوي عبدالرب (وقار) صاحب.

بلآخره په کال 2006 میلادي کې یې دحرکت په نوموړي کیمپ کې په جامعه محمدیه کې له مشهور دیني عالم استاذالحدیث حضرت مولانا عبدالمالک (شیخ زاده) "القدوسي" سره وړه دوره وکړه.

اوپه 2007 میلادي کې یې دلوي دوري لپاره دضلع هنګو په کاهي کې سراج الاسلام مدرسې ته سفر وکړ او دنومیالي دیني عالم، مجاهد، صوفي، استاذ الحدیث حضرت مولانا سمیع الله راشد صاحب سره یې دحدیثو لویه دوره وکړله او دفراغت سند یې تر لاسه کړ..

**دیني خدمتونه:**

د دين خدمت (تدريس او جهاد) سره يې زياته مينه وه بنأ له فراغت څخه ورسته يې په سختو شرائطو کې تقريبا دري کاله په مختلفو مدرسو کې په خوراډېر شوق سره دتدريس چارې جاري وساتلې.

## جهادي مبارزه:

البته داهغه وخت وو چې په ګران هيواد کې خارجي وحشتګرو [امريکايانو] يرغل کړی ؤ، نو شهيد [همام] هم له فراغت نه مخکې دزده کړې په دوران کې (چې عمر يې هم کم و) جهادي خدمت ته ملا تړلي وه او په کال 2004 کې يې ديرغلګرو په خلاف وسله واله مبارزه پيل کړله. او خپله مقدسه مبارزه يې په يوشمير ولايتونو کې لکه پکتيا، پکتيکا، خوست او لوګر کي په ډېر اخلاص او صداقت سره په مخ وړله..

شهيدمولوي احمدالله (همام) دمولوی عبدالله (حسيني مختار) له بندي کېدلو ورسته په ميرانشاه کې دنومووړي دجهادي مرکز او دځدرانو په دره کې دجهادي کنډک مسئول هم پاتې شوی وو،

## دپکتيا دوزې دولسوالي فتحه:

په همدې دوران کې په داسې حال کې دوزې ولسوالي فتحه شوله چې شهيد همام دتعرضي مجاهدينو دقوماندې مسؤليت په غاړه درلوده اوپه نوموړې معرکه يې دلاوري، ايثاراوسربښندنه تراوسه دخلکو په زړونو کې دخوږې خاطرې په توګه ځای لري.

شهيد مولوی احمدالله يو تقواداره، متواضع، خوش طبعه، مخلص، او دلوړ همت اودزړينو اخلاقو څښتن ؤ..

## شهادت:

بلآخره په کال 2010 دجون په8نېټه د دومندو په ولسوالی کې په يرغلګرو باندې دپياوړي کمين په مټ له تندريزو او کاميابو عملياتو نه ورسته چې دصحنې دمجاهد له قوله د خارجي عسکرو په ټانګو باندې اورونه بل و، د دښمن په هوايي بريد کې دشهادت لوړ مقام ته ورسيد. تقبله الله

اناالله واناالیه راجعون

: د شهيد مولوی احمدالله «همام» په حق کې د خليفه صاحب سراج الدين حقاني په زړه پورې خوب:

لکه څنګه چې مخکې واضحه شوه چې همام شهيد د ديني زده کړو ترڅنګ د جهاد له سپيڅلي سنګر سره هم خپله دوستي کلکه پالله، چې د جهاد پرمهال به يو تکړه قومندان او په عادي حالاتو کې به د ملګرو يو لاس په نامه خادم و.

نيک اخلاق، لوړ همت، ميړانه، اخلاص، تواضع او د کمزوري وجود سره سره د جهادي ستونزو زغمل يې ځانګړي خصوصيات وو

د ځدرانو د درې د جهادي کنډک د مسؤليت په وخت کې يې يو لړ کامياب عمليات وکړل او ګڼ شمير غنايم او لاسته راوړنې يې درلودې، چې بالاخره د ۱۴۳۱ سپوږميز کال د جمادی الثاني په اتمه نېټه چې د ۲۰۱۰ زيږديز کال د جون د مياشتې له ۲۵ مې نېټه سره سمون خوري په همدې جګړو کې يې د الله «ج» حضور ته په سرو وينو لژند وجود وړاندې کړ او د شهات عالي مقام ته ورسيد. انا لله وا انا اليه راجعون

د نوموړي شهادت ګڼ شمير کرامتونه له ځان سره درلودل چې يو يې هم له ځدرانو څخه تر ميرانشاه او پېښور پورې د فضاء خوشبو او عطروړينه کيدل وو چې ګڼ خلک يې حيران او د سپېڅلي شهادت کرامت ته ګوته په غاښ کړل.

اود نوموړي په حق کې خليفه سراج الدين حقاني صاحب يو خوب ليدلی وو چې د شهيد «همام» له شهادت نه مخکې يې څو ځل په مجلسونو کې ياد کړی

و؛ خو دا وضاحت يې نه وکړی چې دغه شهيد څوک دی؟

بلکه يوځل شهيدهمام ناست وو اوخليفه صاحب ددغه خوب تذکره وکړله نوشهيدهمام صاحب دتعجب په طوروړته وخندل او ويې ويل: څومره بختور ده! کاشکې داخوب دما په هکله ليدل شوی وای.

خو کله چې شهيد همام د شهادت عالي مقام ته ورسېد او نورپه دې فاني نړۍ کې نه وو نو کله چې د شهيد ورور ميرانشاه ته ولاړ، نوخليفه صاحب د شهيدورور قاري صاحب حجت الله د فاتحې او تعزيت له پاره دهغه د يو مشرملګري « مولوي سرفراز کورته» ور وغوښت، البته خليفه صاحب سره په دغه مجلس کې مولوي صاحب طه هم ناست و، اوهغه يې مخاطب هم کړ خو په اصل کې يې مقصود د شهيد ورور و، اوهغه مخکنی خوب يې ذکر کړ او په اخر کې يې د شهيد ورور ته اشاره وکړه چې دا شهيد ددې قاري صاحب ورور و او ويې ويل: چې زمونږ دغه ملګری ډير تقوی دار او مطيع انسان وو.

خليفه صاحب خوب داسې بيان کړ:

((خوب مې ليده چې څوک راته وايي چې په فلاني ځای کې خلک شهيدان شوي دي او ستاسو ملګري هم په کې دي، زه ورغلم ګورم يو لوړ ځای دی چې زه ور پورته شوم.

ګورم چې د مجاهدو شهيدان او د دښمن د مردارو جسدونه ګډ پراته دي او په دغو جسدونو کې مې د يوه مجاهد په جسد سترګې ولګېدې چې ډير پړسېدلی دی او بد بوی کوي.

سهار چې له خوبه راويښ شوم، نو سخت خواشينی وم.

بله شپه مې بيا خوب ليده، چې يو ميدان وي، د شهيد جسد په کې پروت وي، نو زه ورشم او ورته ودرېږم، شهيد ډير ښايسته ښکاري، ګورم چې يو کاغذ راشي او د شهيد په سينه پريوځي.

کله چې ما دا کاغذ رواخيست او ومې ليد په هغه کې يې ليکلي وو، چې « که هر څوک غواړي چې الله (ج) دې ترې راضي وي، هغوی دې دا شهيد وګوري«

خليفه صاحب وايي چې سهار له خوبه راپاڅېدم، نو د الله (ج) شکر مې اداء کړ چې په ملګرو کې مو نيکان خلک شته.

چارديوالي دې د جنت له هغو تيږو وشي
په کومو تيږو چې لوېدلې د طالب وينه ده

## دشهيد همام (تقبله الله) له کرامتونوڅخه يودا هم وو:

کله چې دجنازې درانه مراسم له ډېردرنښت اوکراماتي ازدحام سره ترسره شول او نوموړی مو دفن کړ نو شفې په تيريدلوسره سبا سهار دلمانځه سره متصل زه (کاتب) دشهيد قبر ته راغلم دقبر سر ته ئې د دوعا لپاره ودريدم نو ما ډيره خوږه خوشبوئي محسوسه کړه چې د قبر له خاورو څخه يې راپورته کيدله ما دا خيال وکړ چې شاهد له ما نه مخکې ورته دکورنۍ څوک راغلي وې او عطر يې ورباندې پاشلي وې خو ورسته دا خبره ثابته شوه چې دا دقبر دخاورو خوشبوئې وه چې په کم وخت کې يې د ديدن لپاره زيات تعداد کې خلک له ډېرحيرت اوتعجب سره راجمع شول او چې څومره به مو دقبر خاوره راسپړله هغومره به يې خوشبوئې زياتيدله او تر لري لري پوري خلکو دتبرک لپاره له ځان سره وړله دهغو خلکو له جملې څخه چې دقبر خاوره يې دتبرک لپاره له ځان سره ساتلې وه يوه ملګري دده له شهادت څخه اته کاله وروسته دکور په يو صندوق کې هغه خاوره راښکاره کړله چې ګوري هغه رنګ خوشبوي يې کوله له څنګه يې چې په لومړۍ ورځو کې کوله..



# د اُحُد مینه

لیکوال: رائد

له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره مینه او محبت د ایمان برخه ده، او تر هغه چې مؤمن بنده ورسره تر خپل ځان، مال او اولاد ډېر محبت ونلري؛ کامل مؤمن کېدلی نشي.

له الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه و سلم سره لوړه مینه د لوړ ایمان نښه ده، نو ځکه؛ مونږ ډېری وخت د الهي مینې اتلان ولیان ګڼو. خو راګرځو یوې بلې مینې ته! چې الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه و سلم پېژني، محبت ورسره کوي، خو مونږ یې لا ژوندي هم نه ګڼو، که یې ژوندي وګڼو بیا یې لا شعوره ګڼو، او د هغوی په مینه نه پوهېږو.

رسول االله صل الله علیه وسلم فرمایي: «أُحُدٌ جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَنُحِبُّهُ» ژباړه: احد داسې غر دی چې هغه له مونږ سره مینه کوي او مونږ له هغه سره مینه کوو.

د اُحُد غر یو عادي غر وو، تېول په تېوله تیره وه، خو! مینه یې کوله، ځکه خو د رسول الله صلی الله علیه و سلم له مینې څخه برخمن شو.

الله تعالی په جماداتو کې هم عجیبه قوت ایښی، چې مینه او محبت به یې کاوه، او د الله تعالی نیک بنده ګان به یې پېژندل.

همدا راز له جابر رضی الله عنه څخه روایت دی چې فرمایي: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْطُبُ إِلَى جِذْعِ نَخْلَةٍ، قَالَ: فَقَالَتْ امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ كَانَ لَهَا غُلَامٌ نَجَّارٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، إِنَّ لِي غُلَامًا نَجَّارًا، أَفَلَا آمُرُهُ أَنْ يَتَّخِذَ لَكَ مِنْبَرًا تَخْطُبُ عَلَيْهِ؟ قَالَ: «بَلَى»، قَالَ: فَاتَّخَذَ لَهُ مِنْبَرًا، قَالَ: فَلَمَّا كَانَ يَوْمُ الْجُمُعَةِ خَطَبَ عَلَى الْمِنْبَرِ، قَالَ: فَأَنَّ الْجِذْعُ الَّذِي كَانَ يَقُومُ عَلَيْهِ كَمَا يَئِنُّ الصَّبِيُّ، فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «إِنَّ هَذَا بَكَى لِمَا فَقَدَ مِنَ الذِّكْرِ» مسند أحمد

جابر رضی الله عنه فرمایي چې: رسول الله صلی الله علیه و سلم به د خرماوو د ونې یوې ستنې ته خطبه ویله، په انصارو کې یوه ښځه وه چې غلام یې نجار وو، هغې وویل: زه یو نجار غلام لرم، آیا ورته امر ونکړم چې ستا لپاره یو منبر جوړ کړي څو ته پرې خطبه ووایې؟ هغه صلی الله علیه و سلم وفرمایل: ولې نه! راوي وایي چې: منبر یې جوړ کړ، کله چې د جمعې په ورځ رسول الله صلی الله علیه و سلم په منبر باندې خطبه وویله، نو د خرماوو د ونې هغه ډډ چې رسول الله صلی الله علیه و سلم به خطبه پرې ویله داسې وژړل لکه یو ماشوم چې ژاړي، نو رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: دې ونې ځکه وژړل چې له ذکر څخه محرومه شوه.

دا وو په جماداتو کې د خرماوو د ونې محبت؛ چې د رسول الله صلی الله علیه و سلم په فراق یې لکه ماشوم غوندې ژړل. ځکه چې له رسول الله سره یې مینه وه.

همدا راز له جابر ابن سمره رضی الله عنه څخه داسې روایت هم شته، چې له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره د کاڼو د محبت دلائل پکې موندل کیږي. هغه فرمایي چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: إِنِّي لَأَعْرِفُ حَجَرًا كَانَ يُسَلِّمُ عَلَيَّ قَبْلَ أَنْ أُبْعَثَ» المعجم الصغير للطبراني

ژباړه: یقینًا زه هغه کاڼي پېژنم چې زما تر بعثت وړاندې به یې په ما سلام کاوه.

دا د هغو جماداتو محبت وو چې مونږ یې ژوندي هم نه ګڼو، همدا راز هغه ژوي هم له رسول الله صلی الله علیه و سلم سره مینه لري چې خلک یې لا شعوره ګڼي. لکه څرنګه چې د عائشې رضی الله عنها د روایت یوه برخه ده چې: أَنّ رَسُولَ اللَّه صَلَّى اللَّهُ عَلَيْه وَسَلَّمَ كَانَ في نَفَر منَ الْمُهَاجرينَ وَالأَنْصَار، فَجَاءَ بَعيرٌ فَسَجَدَ لَهُ، فَقَالَ أَصْحَابُهُ: يَا رَسُولَ اللَّه، تَسْجُدُ لَكَ الْبَهَائمُ وَالشَّجَرُ، فَنَحْنُ أَحَقُّ أَنْ نَسْجُدَ لَكَ.

قَالَ: «اعْبُدُوا رَبَّكُمْ وَأَكْرمُوا أَخَاكُمْ، فَإِنَّهُ لا يَنْبَغي لأَحَد أَنْ يَسْجُدَ لأَحَد. ژباړه: عائشه رضی الله عنها فرمایي: رسول الله صلی الله علیه وسلم د مهاجرینو او انصارو په یوه ټولي کې وو، چې یو اوښ راغی او رسول الله صلی الله علیه و سلم ته یې سجده وکړه، نو صحابه کرامو وویل: یا رسول الله! ځناور او ونې تاته سجده کوي، مونږ سره خو لا ډېره ښايي چې تاته سجده وکړو. هغه صلی الله علیه و سلم وفرمایل: د خپل رب عبادت وکړئ! او د خپل ورور درناوی وکړئ! ځکه، له هېچا سره مناسب ندي چې بل کس ته سجده وکړي.

د رسول الله صلی الله علیه و سلم له اصحابو رضوان الله علیهم اجمعین څخه په روایت شویو احادیثو او کیسو کې ډېرې داسې پېښې شتون لري چې جماداتو او یا هم حیواناتو د الله د توحید او د رسول الله د رسالت ګواهي ورکړې او یا یې هم د خپلې مینې اظهار کړی.

له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د جماداتو او حیواناتو د مینې روایات د اسلامي امت لپاره د مینې ستر درس دی، چې له الله تعالی او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د زړه له کومې محبت ولري.

مینه او محبت د زړه ځانګړی کیفیت دی، چې په بصیرت سره د کمال له لیدلو ټوکیږي. انسان مینه کوي او کولی یې شي، ځکه؛ زړه لري، سترګې لري، او هر څه ویني. د محبت دنیوي او اخروي لاملونو ته په کتلو سره مؤمن له خپل رب او د هغه له رسول صلی الله علیه وسلم سره مینه لري. خو عجیبه ده!! انسان خو یې ویني، خبرې یې اوري، او په لارښوونو یې د عمل کولو له امله د بریاوو تصور کولی شي؛ خو غر څنګه محبت کولی شي؟؟ ونه بیا محبت څه پېژني؟؟ او حیوانات بیا په محبت څه پوهیږي؟؟ هوکې! دا د مینې له لوړتیا زیږیږي، کله چې په یو چا کې د محبت وړتیا تر اندازې ډېره وي بیا یې مینه یواځې تر انسانانو محدوده نه پاتې کیږي، بلکې د حیواناتو او جماداتو د محبت کیسې یې هم اورېدل کیږي.

هو!! احد غر وو، تېره وه او مونږ یې د حس تصور هم نه کاوه، خو؛ له رسول الله سره یې مینه وه، هغه هم ورسره محبت کاوه، تر دې چې د محبت کیسه یې تر مونږ راورسېدله.

له هغه محبت به انسان څنګه انکار وکړي چې د ونې له ډډ څخه د جانان د بېلتون له امله د ماشوم په څېر د ژړا غږ اورېدل کیږي. هغه محبت به تاریخ څنګه هېر کړي، چې: د اوښ له لوري زما جانان صلی الله علیه وسلم ته سجده کیږي. او هغه که مینه نده نو څه به وي چې د تیرو له لوري ورته سلامونه کیږي.

اې!! عجیبه ده! چې احد ورسره مینه کوي زه یې ورسره ونکړم؟؟؟ چې ونه پسې ژاړي زه یې د وصال له شوقه ونه ژاړم؟؟ او تر ټولو مهمه دا چې: اوښ یې په پښو کې سر ږدي زه پرې سر نذرانه نکړم؟؟؟

کومه معمايي افسانه نده؛ د جانان مینه ده، چې غواړم د اصحابو په لار قدم کېږدم، او په مینه یې ځان نذرانه کړم. د یو چا د مینې تصور چې د احد د مینې په څېر له عقل پورته وي، په ګوډ او مات قلم به څنګه انځور شي؟ او څنګه به یې تعریف وشي؟!

هو!! که غواړې چې د جانان تر مینې ځان ورسوې؛ نو د احد په څېر استقامت، د اوښ د روایت په څېر عاجزي او سرښندنې ته اړتیا ده. کله چې د جانان د مینې لپاره یې په پښو کې سر ایښودل کیږي، مونږ هم دېته تیار یو چې د جانان د دفاع لپاره د خپلو ځانونو نذرانه وړاندې کړو.




# د علم فقهې په تاریخ کې

## د هدایه او صاحب الهدایه مقام

ليکوال: مولوي احسان الله حقاني

علامه مرغيناني چې د صاحب هدايه په لقب باندې هم مشهور دی، يو ډېر انتهائي زبردست او تکړه ديني عالم او د يو منل شوي حيثيت لرونکی فقيه دی.

په عام او خاصه توګه يې ټول خلک د خپل اصل نوم پرځای د صاحب هدايې په نوم سره پيژني، ددې مبارک عالم اصل نوم (بُرهان الدين ابوالحسن على بن ابى بكر بن عبدالجليل بن الخليل بن ابى بكر الفرغانى المرغينانى) المعروف بصاحب الهدايه ده.

دا مبارک شخصيت د حضرت ابوبكر الصديق رضى الله عنه له اولاد نه دی چې ولادت يې په ۵۱۱ هجري د رجب په اتم ۸ تاريخ د سه شنبې په ورځ د مازديګر له لمانځه نه وروسته شويدی. (مقدمة الهدايه – لكهنوى صـ ۱)

بعضې علماء کرامو دده د تولد سنه ۵۳۰ هم ښودلي ده (الاعلام، خيرالدين الزركلي، پنځم جلد، صفحه ۷۳)

محترم مرغيناني حافظ قرآن، مفسر، محدث، فقيه، محقق او مدقق، اديب، شاعر او ډېر زيات اصولي شخصيت وو.

د فقهاء احنافو په نيزد مرغيناني صاحب مجتهد مقيد دی.

دا قسم مجتهد اصحاب تخريج او اصحاب تصحيح وي کوم چې په اصول او فروع کې د يو امام پابند وي ليکن په شرعي احکامو کې د صحيح حقيقت او د منشاء د کامل معرفت په وجه بعض وخت په بعض احکامو کې استخراج او استنباط کوي. بعض روايات، آراء او اقوال په يو او بل باندې ترجيحوي او په هغه مسائلو کې چې له مخکې نه په کې کوم حکم موجود نه وي اجتهاد کوي.

محترم مرغيناني صاحب په فقه کې ډېر کتابونه ليکلي دي چې مشهور يې:

الهداية، بداية المبدى، كفاية المنتهى، مناسک الحج، نشر المذاهب، مجموع النوازل، مختار الفتاوى، منتقى الفروع، الفرائض، التجنيس والمزيد او شرح الجامع الكبير.

مرغينانى صاحب د الهدايه کتاب د ليکلو شروع په کال ۵۷۳ هجري د ذى القعده په مياشت کې د چهارشنبې په ورځ کړيده.

دده شاګرد بُرهان الاسلام الزرنوجي وايي چې مرغينانى صاحب به ويلې [ما من شئ بدئ يوم الاربعاء الا وقد تم] يعنى هر هغه کار چې د چهارشنبي په ورځ شروع شي حتما به په اختتام رسيږي، ان شاء الله.

دی وايئ چې د امام اعظم رحمه الله هم همدا معمول وو چې کار به يئ د چهارشنبي په ورځ شروع کول.

اوس هم ډېر باخبره علماء دا معمول مخ په وړاندې وړي (الجواهر المضيه، اول جلد، صفحه ۲۸۴).

دا معمول نه يواځې چې علماء کرام کوي بلکې صحابه کرام رضي الله عنهم هم په دې باندې معتقد ول. د لا زياتو معلوماتو لپاره د امام جلال الدين سيوطى رحمه الله تصنيف [سهام الاصابه فى الدعوات المستجابه] او د شيخ نورالدين على بن احمد المسعودى تصنيف [وفا الوفاء باخبار المصطفى] مطالعه کړئ.

د ځينو علماء په قول، هدايه شريفه په ۱۳ کلونو کې تکميله شويده چې د شيخ اکمل الدين رحمه الله د روايت په مطابق په ديارلس ۱۳ کاله کې مرغيناني صاحب رحمه الله مکمل روژه نيولی ده.

او ده په دې ټول دوران کې دا کوشش وکه چې خپله روژه پټه وساتي او د خادم راوړي ډوډی په کوم حاجتمند يا طالب العلم باندی وخوري ترڅو خادم

خالی لوښي بیرته یوسي (کشف الظنون حاجي خلیفه ک ۲۵۳۲ / مقدمة الهدایه – لکهنوی دوهم صفحه)

هدایه شریفه په څلور جلدو باندې مشتمله ده چې اولو دوو ته یې اولینه هدایه او آخري دوو ته یې اخرینه هدایه وایی.

هدایه شریفه د حنفي فقهي یو ډیر زیات معتمد کتاب دی، تدریسول ددی کتاب متبحر علم ته ضرورت لری، بعض خلک په دې کتاب باندې نیوکه کوی.

دوی په خپل ځای سم دی ځکه چې د هدایې شریفې له عبارت نه همداسې برداشت کوي. خو چون د علم د کمبود له لحاظه اصلي مطلب ته نشي رسیدی.

که یو کتاب په همداسې عبارتونو باندې مشتمل وي نو علماء کرام هغه کتاب ته شرحې لیکې ترڅو عام مسلمانان او عالمان وکولای شي چې ښه پری وپوهیږی. نو په همدی خاطر چې په هدایه شریفه باندی هرڅوک د یو عام لوستونکی په څیر نه پری پوهیږی نو علماؤ لاندی شرحی پری لیکلی دی. رد کوونکی کولای شی چې د انتقاد نقطه په شرحه کی ولولي.

الهدایه ډیری زیاتی شرحی لری چې مشهوری او معتمدی شرحی یې عبارت دی له:

1. الفوائد: چی حمید الدین علی بن محمد العزیر البخاری په دوه جلدو کی لیکلی ده. غالبا چی دا به د ټولو نه اوله شرحه وی.

2. نهایة الکفایه فی درایة الهدایه: چی تاج الشریعة عمر بن صدرالشریعة الاول عبیدالله المحبوبی الحنفی په کال ۶۷۲ کی لیکلی.

3. الغایه: چی ابوالعباس احمد بن ابراهیم السروجی القاضی الحنفی په کال ۷۱۰ هجری کی لیکلی. دا په څو جلدو کی لیکل شویده چی د قاضی سروجی رحمه الله له مړینې وروسته قاضی سعدالدین محمد الدیرمی تکمیل کړیده.

4. النهایه: چی حسام الدین حسین بن علی المعروف بالصغناقی الحنفی لیکلی ده.

5. معراج الدرایه الی شرح الهدایه: چی قوام الدین محمد بن محمد البخاری په کال ۷۴۹ هجری کی لیکلی ده.

6. غایت البیان و نادرة الاقران: چی قوام الدین امیر کاتب بن امیر عمرالاتقافی الحنفی په کال ۷۵۸ کی په دوه جلدو کی لیکلی ده.

7. الکفایه فی شرح الهدایه: چی السید جلال الدین الکرلانی په کال ۷۶۷ کی لیکلی ده.

8. شرح الهدایه: چی حافظ الدین ابوالبرکات عبدالله بن احمد النسفی لیکلی ده.

9. فتح القدیر: چی کمال الدین محمد بن عبدالواحد السیواسی المعروف بابن الهمام الحنفی په کال ۸۶۱ هجری کی لیکلی ده. ملا علی قاری صاحب رحمه الله په دی باندی حاشیه لیکلی ده چی دوه جلده ده.

10نتایج الافکار فی کشف الرموز والاسرار: چی شمس الدین احمد بن قورد المعروف بقاضی زاده المفتی په کال ۹۸۸ هجری کی لیکلی ده.

11. التوشیح: چی سراج الدین عمر بن اسحق الغزنوی الهندی لیکلی ده.

12. العنایة: چی شیخ اکمل الدین محمد بن محمود البابرتی الحنفی په دوه جلدو کی لیکلی ده.

او داسی نوری ۲۳ شرحې لرم چې نومونه یې ولیکم خو د ډیر ټایپینګ حوصله نلرم یواځی ضروری ضروری نقطی به ولیکم.

خلاصه به داسی ووایم چی الهدایة باندی:

۳۶ شرحی لیکل شویدی

۹ حواشي لیکل شویدی

۵ د اختصار او تلخیص کتابونه پری لیکل شویدی

۲ کتابه په نامه د تجرید المسائل پری لیکل شویدی

۱ کتاب په نام د جواب الجروح پری لیکل شویدی

۱۶ د تعلیقات کتابونه پری لیکل شویدی.

۳ کتابه د شرح الاجزاء پری لیکل شویدی.

او ۱ دانه تعارفی مقدمه پری د مولانا عبدالحی لکهنوی لخوا لیکل شویده!

# ګرانه!

## پام چې خطا نه شې!!



ګرانه فاضله! پوهېږم: کلونه ـ کلونه دې د دې سترې لارې په مزلونو کې کړاوونه ګاللي. پوهېږم کړېدلی او ځورېدلی به یې، که څه هم جولۍ دې اوس له ګلونو ډکه خو! په دې اغزنه لار کې سترې به یې.

هو! خبر شوم؛ ستا نن د فراغت ویاړ غونډه وه، ته فارغ شوې؛ خو! ګوره چې د یو هوسا ژوند لپاره نه! بلکې اسلامي امت ته دخدمت لپاره فارغ شوې، د اسلام په دفاع کې یوې سپېڅلې تورې ته فارغ شوې! ګرانه! منم چې تاته لیکنې او خبرې کول به داسې وي لکه په یو باغوان چې څوک منې خرڅوي؛ چې بې فایدې یې ګڼم.

خو! داچې یو څه مې په زړه دي غواړم درته یې څو کرښو کې ولیکم. ګرانه ته پوهېږې! چې ستا له مدرسې فراغت؛ یوې لوېې اسلامي جامعې ته خدمت لپاره د فراغت په معنا ده! آیا ته پوهېږې! چې ستا له بخاري او ترمذي فراغت، نظامي ډګر ته د وردانګلو په معنا ده!

آیا ته پوهېږې! چې ستا له درسونو فراغت تورې ته فراغت ده! اې! په دې هکله یو شاعر څه ښه وايي: چې درسونو نه فارغ شي، تورو ته فارغ شي چې تورو نه فارغ شي، حورو ته فارغ شي؟

آیا ته پوهېږې! چې تاته دغه سپینه ویاړلې ولول پګړۍ تړل د یو ستر درون بار او مسئولیت په معنا ده!

آیا ته پوهېږې! چې تاته مسلمه امت کلونه ـ کلونه څومره تریخ انتظار کړی!!! هو! ګرانه! تاته د نړۍ پر مخ ځوریدلی، کړیدلی ولس په انتظار ده او تاته یې هیلې دي. د هر یتیم معصوم بچي هم تاته سترګې او تا له خدایه غواړي، تاته هرکلی وایي.

اې! ګرانه! ته خبر یې! چې د نړۍ ټولې کفري ادارې ستا او ستا د سپینې پګړۍ په خلاف یو موټی شوي! هو! هغوی غواړي چې تانه ستا غیرت، عزت، مقام او حیثیت واخلي.

دوی هڅه کوي چې ستا په زړه کې ویښ احساس، تانده جذبه او ایماني قوه مړاوې او بلآخره تا ووژني. دوی غواړي ترڅو د مادیاتو په بدل کې له تاڅخه ستا خوږه جذبه او خوږ ایمان واخلي او له تاڅخه یو سیکولر او ډیموکرات طلبه ملا جوړ کړي.

ګرانه فاضله! پام چې ددغو کرغېړنو لومو ښکار نه شې!!! پام چې خطا نه شې!!!



# د شهید ملا نعمت الله سالک

## جهادي ژوند ته کتنه

لیکنه: میرویس

شهید ملا نعمت الله اخند (چې په امیر صاحب یې شهرت درلود) د پاینده محمد اکا زوی د نیکه نوم یې نجب الدین په قوم هوتک د زابل ولایت د شنکۍ ولسوالۍ د زلتې د کلي چې اوس یې خلگ ځای بولي اوسېدونکی و.

په کال ۱۳۵۰هـ ش کې یې د شنکۍ ولسوالۍ د وچکي په کلي کې دې فاني دنیا ته سترگې وغړولې، لا ماشوم و چې د مهربانې مورکۍ د شفقت سیوری یې له سره تېرول شو.

د شهید رحمه الله تعالی د والد صاحب جهادي کارنامې هم له چا پټې نه دي کله چې د کمونیستي یرغلگرو پر خلاف د زابل په شنکۍ ولسوالي کې چې د روسي یرغل پر خلاف د خوځښتونو او فتوحاتو لومړنۍ ولسوالي ده، پراخ برید ترسره شو چې په نتیجه کې یې د ولسوالۍ مرکز، کنډک او قومنداني فتح شول، زیات شمېر خلقیان پکې و وژل شول، د یاد شهید والد صاحب هم یو له هغو لومړنیو مجاهدینو څخه و چې د عمومي قومندان ملا خدای داد اخند شهیدتر مشرۍ لاندې یې سنگر تود او فعال ساتلی و.

بیا چې کله د هجرت کولو لړۍ پیل شوه شهید ملا نعمت الله سالک چې دا وخت د اتو کالو و، له خپلو ورونو سره یو ځای په کال (۱۳۵۸) هـ ش د وړي په میاشت کې له خپل پلارني ټاټوبي سره خدای په اماني وکړه، پلی پلی د گاونډي هیواد پاکستان په خوا وخوځید، لومړی بادیني بیا مسلم باغ او بیا دوکۍ ته له دوکۍ وروسته د غزگۍ کمپ ته یې ځان ورساوه، هلته یې لومړنۍ زده کړې پیل کړې.

### لومړنۍ زده کړې:

شهید ملا نعمت الله سالک د کلي له ملا امام ملا عبدالباقي اخندزاده صاحب څخه لومړنۍ زده کړې، په مسجد او وروسته بیا په احسان المدارس مدرسه کې تر سره کړې، وروسته په مسلم باغ کې د مولوي باز محمد صاحب مدرسه صنفیة او نور المدارس مسلم باغ کې چې دواړې د حرکت انقلاب اسلامي له جوړې شوې وې اوسېدلی دی. د منځنۍ درجې سبقان یې زیاتره په پاکستان کې د هجرت په مهال په ډېره اسماعیل خان، دوکۍ، سنجاوۍ، مسلم باغ، لورلایي او کوټه کې ویلي دي.

شهید ملا نعمت الله سالک پر ښو اخلاقو، اخلاص، او خوشحال طبیعت، سخاوت، میلمه پالنې سربېره د ښې پوهې او زیرکتیا څښتن هم و. ځکه هر استاذ او ملگرو زیاته مینه ورسره لرله.

### د جهادي بهیر پیل:

د کمونیسټ ډاکټر نجیب د حکومت په دوره کې چې کله د زابل ولایت پر مرکز کلات د مجاهدینو له خوا پراخ برید ترسره شو، شهید امیرصاحب تنکی زلمی و چې د نورو مجاهدینو تر څنگ یې د حاجي سلام خان په جبهه کې د ملا عبد المالک تر قومنده لاندې د زبیدې په قرارگاه کې د گارو په کمر بند کې خپل خدمت کاوه، آن تردې چې د نجیب حکومت سقوط وکړ، د کمونیستي بلا پښې لنډې شوې، زموږ گران

هیواد یې له وحشتونو څخه د ارام ساه واخیسته د اسلامي انقلاب وياړ افغانستان ته ور نصیب شو. شهید ملا نعمت الله سالک د ډیرو نورو مجاهدینو طالبانو په شان بیرته خپلو سبقانو ته را ستون شو.

## د افغانستان اسلامي امارت کې یې خدمتونه:

کله چې د وطن ځینو فاسدو اقشارو په ګران هیواد کې فساد اوج ته ورساوو، د له منځه وړلو له پاره یې جناب عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د طالبانو اسلامي تحریک په نوم تحریک پیل کړ، شهید امیرصاحب له ګڼو نورو ملګرو سره یو ځای خپل د هجرت له ځای (لورلایي) څخه د کندهار ډنډ ولسوالۍ ته ځان ورساوه، هلته د طالبانو یو اطاق و هلته میشت شو. په دې ورځو کې سپین بولدک او کندهار فتح شول، شهید امیرصاحب په والي کوټۍ کې چې د تحریک عمومي مرکز او د طالبانو عمومي قومنداني وه اوسیدی. والي کوټۍ (چې اوس یې د منديګک مانۍ بولي) هغه وخت جناب عالیقدر امیرالمؤمنین، حاجي معاون صاحب او نور زیات شمېر مشران دلته اوسېدل شهید سالک صاحب هم دلته خپل جهادي خدمت کاوه او څه موده وروسته یې بیا د کندهار ښار د شپږمې ناحیې د مرستیال ترسره کړه او بیا چې کله د نیمروز ولایت فتحه شو نوموړی د نیمروز ولایت د عمومي ښارو په حیث مقرر شو.

کله چې عالیقدر امیر المؤمنین او مشرانو ډلګۍ مشران تشکیل کړل شهید ملا احمد الله اتل چې د کندهار قشله جدید (۱۵) پلې فرقې عمومي قومندان او ملا سعد الدین سعید مرستیال وټاکل شهید ملا نعمت الله اخند یې د غنډ ثقیله توپچی قوه قومندان وټاکی او د شنکۍ ولسوالۍ طالبانو د امیر په حیث تعین کړ نو ځکه یې د امیر صاحب نو م شهرت موندلی دی. شهید امیر صاحب د تورن اسمعیل خان په مقابل کې دلارام، یګه توت، چلکاو، بالابلوک، فراه رود، بکواه ګلستان ولسوالي، آب خورما او زیرکوه کې ډېر په مېړانه خپل جهادي خدمت ترسره کړ.

وروسته شین ډنډ فتح شو. د ادرسکن له لارې هرات هم فتح شو. شهید امیر صاحب او ګڼ شمېر نورملګري لومړی کندهار ته او بیا چهاراسیاب ته د مشرانو په امر ځانونه ورسول، په چهار اسیاب کې لوی کمربند و چې عمومي مسئول یې ملا بورجان اخندو، د توپچي قوې مسئول شهید امیر صاحب و، د الله تعالی په نصرت سره چې جلال اباد، لغمان او کنړ فتح شول، حاجي ملا بور جان اخند یو لوی فاتح کاروان د وربښمین تنګي ماهیپر له لارې و کابل ته را روان کړ، دلته شهید امیر صاحب او نور ګڼ شمیر مجاهدینو د ریشخور فرقې او کوه کرغ د سنګرونو له لارې و دښت برچي ته ځان ورساوه، هلته لوی فاتح کاروان د ماهیپر له لارې څخه هود خیل او پل چرخي او پل محمود خان له لارې ارګ ته فاتح لښکر ورسېد د کابل له فتحې وروسته شهید ملا نعمت الله سالک د مشرانو له هدایت سره سم فرقه شش قوه زرهدار کوتل خیر خانه کې ځای پر ځای شوو.

شهید ملا نعمت الله سالک د شمالي (پروان، کاپیسا، پنجشیر) په ټولو مهمو تعرضونو کې شرکت درلود، وروسته چې په فاریاب کې له دوستم سره جنګ زور واخیست نوموړی له خپلو ملګرو سره د فاریاب خط ته ولاړ او هلته یې هم ډیره موده جهادي خدمت وکړ. خو وروسته بیرته د کابل د شمال خط ته راستون شو. کله چې طالبان په ۱۳۷٦ هـ ش کال کې د شهید ملا داد الله اخندپه مشرۍ د سالنګ له تونل ووتل، بغلان، پلخمري یي ونیول او وروسته یې کندز فتح کړ په دې تاریخي کارنامه کې هم شهید ملا نعمت الله اخند د یوه مشر مجاهد په حیث جهادي خدمت سرته رساوه.

وروسته د کندوز ولایت د امام صاحب ولسوالۍ د شیرخان بندر پر عمومي سرک د الچین د پل پر سر د عمومي کمر بند مسئول وټاکل شو، کله

چې د اختپه، امام صاحب، دشت ارچي او قلعه زال خلک له امارت سره يو ځای شول شهيد امير صاحب ملا نعمت الله اخند د خان اباد ولسوالۍ د کمربند د توپچي قواه قومندان شو چې عمومي قومندان امير خان حقاني و، په خان اباد کې په سختو جګړو کې زخمي شو د يادونې وړ ده چې د ياد شهيد رحمه الله تعالی د جهادي خدماتو په بهير کې دا لومړی ځل و چې زخمي شو، له تداوي کولو څخه وروسته بېرته خان اباد ته ستون شو او هلته يې له امير خان حقاني صاحب تر څنګ خدمت کاوه او ترډېره وخته هلته پاتې شو.




### د ځانګړو کوماندويي عملياتو واقعه

کله چې ملا محمد نعيم نافذ د کندوز عمومي مسئول و نوموړی ډېر په تکتيک پوه سړی و، دښمن د ينکي له خوا د خان اباد سيمې ونيولې لکه شيخ علي کلی، ملا صمد کلی، د ويران کلی، بندفرق او د غلام کور کندو يعني د غره ساحه د خان اباد د سقوط ذريعه جوړېده. دلته ملا محمد نعيم نافذ راغی چې درې هليکوپټرې هم ورسره وې. خپل ملګري او د شهيد ملا نعمت الله اخند ملګري يې کې سپاره کړل او د دې ځواک قومنده هم د شهيد ملا نعمت الله سالک رحمه الله تعالی په غاړه وه، لوړ پرواز يې ورکړچې دښمن او طالبانو ټولو د خان اباد په جنګي ساحه کې وليدلې د خان اباد پر جنوبي برخه ولاړې، د دِه ويران د کلي لوړو تپو چې د بنګي درې سرونه نژدې وو د دښمن لوی مرکز هلته وجود لاره او هيلوکوپټرې يې کوزې کړې، طالبان يې د دښمن په منځ کې پياده کړل، کله چې دښمن هيلوکوپټرې وليدې ډېر وارخطا شو قومندانان يې ټول د جنګ له ميدن څخه وتښتيدل، کله چې کوماندويانو طالبانو هلته جنګ شروع کړ، دلته په خان اباد کې هم طالبانو جنګ شروع کړ، طالبانو په ډېره اسانۍ سره خپلې سيمې بيرته ونيولې او دښمن ته يې سخت ګزاز ورکړ او هم يې له خان اباد څخه دفاع وکړه او هم بند فرق، شيخ علی، ملا صمد کلی او دويران علاقه ونيول د غه د شهيد ملا محمد نعيم اخند تکتيک و او د شهيد ملا نعمت الله امير صاحب کمندو ځواک، له دې فتح سره د تخار د نيولو زمينه هم برابره شوه.

همدارنګه يې د مشرانو له هدايت سره سم په کونړ ولايت اسمار ولسوالۍ، جغال سرای، تګاب او نجراب کې خدمت کړی

دي. د تخار په فتحه کې یې مهم رول درلود، د لتین د کمربند مسئول و.

شهید ملا نعمت الله خند په هغو سترو عملیاتو کې هم برخه درلوده کله چې یو لوی کاروان د میدان ښار جلیز د لارې د بامیان د فتح کولو په مقصد ولاړ د سخاک او حاجي ګګ د لوړ کوتل له لارې په سختو جنګونو کې تېر شو هلته بل کاروان د شیبر کوتل له لارې او بل کاروان د دوشي او کیان درې له لارې راغی، د بامیان د سترې فتح له پاره یوځای شول او بامیان یې له سخت جنګ او تکلیف وروسته فتح کړ، د محقق، کریم خلیلي او محسني ملیشو ماته وخوړه.

په دې وخت کې عالیقدر امیر المؤمنین ملا محمد عمر اخند مجاهد له معمول سره سم لویې تبادلې او نوې ټاکنې وکړې چې شهیدملا نعمت الله اخند یې پکې د بغلان ولایت د عمومي قومندان امنیه په حیث مقرر کړ، چې له دې مخکې د سمنګانو امنیه قومندان و، له یو کال خدمت کولو وروسته بیا د عالیقدر امیر المؤمنین په امر سره د سمنګان ولایت (۱۹) پلې فرقې قومندان په حیث وټاکه چې په سمنګان دره صوف د محاذ او رویي دواب ولسوالۍ د دوه کمربندونو مسئولیت یې ور کړ، ډېر په مېړانه سره یې مبارزه کوله.

کله چې د کندهار په ارغنداب کې عبدالحکیم سګوان بغاوت وکړ، که څه هم شهید امیر صاحب په رخصتي راغلی و، د اختر شپه وه چې د مشرانو له هدایت سره سم له نورو جهادي مشرانو سره یو ځای د کندهار د ارغنداب ولسوالۍ د ناګهان سیمې ته لاړ، عبد الحکیم جان یې محاصره کړ، د اختر د شپې تر سهاره یې خپلې مبارزې ته ادامه ورکړه، عبدالحکیم جان وتښتېد او مشکل حل شو. دغه راز کله چې د مزار له فتحې وروسته له ایران سره اړیکي خرابې شوې او ایران د افغانستان پولې ته نږدې پوځي تمرینات پیل کړل او د پوځي یرغل ویره موجوده وه، د مرحوم امیر المؤمنین په لارښونه شهید ملا نعمت الله سالک له ګڼو نورو مجاهدینو سره د ایران سرحد ته لاړ او وروسته چې مشکل حل شو بیرته د هیواد شمال ته لاړ.

شهید رحمه الله تعالی ډېر تکړه او وتلي جهادي ملګري لرلي دي د هغوی له جملې څخه یې څو نومونه په لاندې ډول دي:

شهید ملا محمد صادق اخند، شهید ملا عبدالحق حقاني، شهید ملا محمد اشرف شرافت، شهید ملا محمد نجم الدین ثاقب، شهید ملا محمد ابراهیم مصلح، شهید ملا محمد نعیم ندیم انقلابي، شهید مولوي عبدالله اقبال، شهید ملا عبدالنصیر نصرت، شهید عبدالصمد او داسې نور زیات شمیر شهیدان چې سلګونو ته رسېږي.

## د شهید ملا نعمت الله سالک شهادت

کله چې صلیبي ځواکونو د امریکا په مشرۍ پر افغانستان ناروا یرغل وکړ، شهید امیر صاحب ملا نعمت الله اخند د بلخ ولایت په دره صوف ولسوالۍ کې د کمربند مسئولیت لاره، په اخر کې د مزار شریف البرز غره په لمن کې د امریکا د وحشيـ بمبار له کبله ملاعبدالرزاق نافذ زخمي شو او امیر صاحب په شهادت ورسېد. انا لله وانا الیه راجعون.

د البرز غره په لمن کې د کاد فابریکې په جنوب کې د امریکایي وحشي بمبار پر وخت د سهار د لسو بجو په وخت په شهادت ورسېد. کله چې شهید کېدی په هغه شپه یې خوب لیدلی و، شهید ملا محمد نعیم انقلابي ویل چې ماته یې وویل: مانښام مې رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوب ولید او راته ویې ویل دلته راشه او دېخواته راشه او رسول الله صلی الله علیه وسلم د فابریکې سره ولاړ وي او په لاس اشاره راته کوي، راته وایي دلته راشه او دېخواته راشه.

شهید رحمه الله تعالی دغه الفاظ شهید ملا محمد نعیم ته په خپله ویلي و او په هغه سهار د شهادت لوړ مقام ته ورسي.

روح دې ښاد او یاد دې تل وي. آمین ثم آمین.

# پر دمشق د امریکا حمله

# او د دریم نړیوال جنګ وېره

حسن مومند



دروانې اپریل میاشتې په ۱۴ مې نېټې امریکا او دوه مهمو اتحادیانو(برتانې اوفرانسې ) یې پرشام له ۱۰۰ زیات ټوماهاک کروز توغندي وتوغول اوټورنېډو، رافیل اومیراج په نوم دوخت عصري طیاروهم بمبار وکړ .

امریکا اواتحادیانو یې له دې حملې نه وروسته ادعا وکړه چې هغه ځایونه یې په نښه کړیدي چې پکې کیمیاوي وسلې جوړېدلې .

دوئ ددې حملې لامل پردومادبشارالاسدله لورې دکیمیاوي وسلوکارول ګڼلي دي چې پکې له ۱۰۰ زیات عامووګړو خپل ژوند له لاسه ورکړ ؛دوئ ویلي دي چې پردوما دکیمیاوي غاز د کارول کېدوشواهدیې ترلاسه کړیدي خودشام رژیم ، ایران اوروسې ددوئ دا ادعا بې بنسټه ګڼلی ؛ حمله یې غندلی ده؛ د امریکا او اتحادیانو داحمله یې دنړیوالو اصولو نه سراسر مخالفت ګڼلی دی او دایې دشام ددولت په مقابل کې ددوئ په اصطلاح د تروریستانو دماتې پرمهال د امریکا،برتانیې او فرانسې له لورې مداخلت بللی ؛روسې ، ایران اوبشارالاسد درې واړو له دې انکار کړیدی چې ګینې پر دوما دې دبشارالاسد له لورې کیمیاوي حمله شوی وي ؛ دوئ دکیمیاوي حملې دتحقیقاتولپاره دملګروملتونو داداري له لورې ټاکل شوی ټیم هم په خپل وخت دوما ته ونه رسولو؛ نېږدې ۳ اوونۍ یې وځنډولوچې له امله یې لویدیځ سخت احتجاج وکړ اوبیا دامریکا په مشرۍ کې پر دمشق داحمله رامنځته شوه.

شایدپردوما داسرائیلو له لورې دحملې خبره دروغ وي اوربښتیا هم داحمله بشارالاسد کړې وي خوامریکا پدې اړه هیڅ شواهد نه لري چې دادې ربښتیا هم بشارالاسد کړې وي.

هو! بدقسمتي داده چې په کورنیوجنګونو اوبیاهغه هم چې دمسلمانانو په کوم هېواد کې وي همداسې بې بنسټه خبرې دلویوحملو اوسترو هلاکتونولامل ګرځي .

خوګوک به داسې وي چې دسترو زبر ځواکونو اوبیا خصوصاً دامریکانه وپوښتي چې ولې دې بې دلیله حمله وکړه ؟

امریکا اوبرتانې په ۲۰۰۳ م کال کې پرعراق پدې پلمه حمله وکړه چې پکې کیمیاوي وسلې دي اوددې وسلوشتون دسیمې دهېوادونولپاره خطر دی ؛ دامریکا ددې حملې په نتیجه کې عراق لوټې لوټې شو؛ نظام یې ړنګ شو ؛ کابو یونیم ملیون عراقیان ووژل شول اوداهېوادپه یو نه ختمېدونکې فرقه یز جنګ اخته شو؛ بیا امریکا ومنله چې په عراق کې دکیمیاوي وسلودشتون خبره ناسمه وه او دامریکا جاسوسې شبکې سي . آی .ای پدې اړه

دروغ ویلي وو خوځوک دي چې دامریکا نه ویوښتي چې که عراق بالفرض کیمیاوي وسلې لرلای هم تاته دحملې کولوڅه حق و؟

په نړۍ کې خولسګونه هېوادونه کیمیاوي وسلې لري اودهریوداکیمیاوي وسلې دنورولپاره څکه خطر دی چې دهمدې لپاره یې جوړې کړیدي چې داړتیاپرمهال یې دخپل دښمن پرضد وکاروي نوامریکا!تاپربل کوم هېوادحمله کړیده چې پرعراق دې وکړه ؟

اوبیا چې دې دحملې کولوپلمه بېخي غلطه ثابته شوه نو ددې جنګ په نتیجه کې عراقیانوته داوښتوځاني اومالي تلفاتو تاوان به څوک ورکوي ؟

پردمشق له حملې وړاندې ټرمپ ویلي وچې دشام ولسمشر یو عفریت اوځناور دی چې خپل ولس وژني .

خوهیڅوک داسې نشته چې ټرمپ ته ووایې چې دستا اوستانه مخکې ولسمشرانو په حکم چې په عراق اوافغانستان کې دسونوزروبې ګناه انسانانوقتل عام رامنځته شواولاهم روان دی تاسې دامریکا ولسمشران څومره ځناوران یاست واړه که ستر؟

دټرمپ نه خو داپوښتنه هم پکارده چې پرفلسطیني مظاهرچیانوچې داسرائیلي لومړي وزیر بن یامین نتن یاهو په حکم اسرائیلي فوځیان ډزې کوي چې په نتیجه کې یې په لسګونوشهیدان اونږدې دوه زره ټپیان شویدي بن یامین نتن یاهواونور اسرائیلي مشران څومره ځناوران دي؟

امریکا دوخت هغه فرعون دی چې ځانته یې دهرچانه دپوښتنې کولوحق ورکړیدی خوپه نړۍ کې هیچاته داحق نه ورکوي چې ترې وپوښتي .

پردمشق له حملې وروسته داتحادیانوله لورې دمطبوعاتو له لارې په خپورکړای شوي راپورکې راغلي وچې ۵ هغه ځایونه تباه کړای شول کوموکې چې کیمیاوي موادتیارېدل اویا ورنه کیمیاوي حلمې کېدلې ؛دامریکا ولسمشرټرمپ داحملې کامیابې وګڼلې او پینټاګان اودلندن اوپاریس فوځي منابعوویل چې پردمشق دحملې هدف دشام دکیمیاوي حملې صلاحیت له منځه وړل وچې دا هدف ترلاسه شو.

دروسې ولسمشر ولادي میرپوتین چې پرشام دامریکا داحمله غندله نوښه په روښانوټکویې دا پرشام تجاوز وګڼلو اوویې ویل چې دې ژر به پدې اړه دملګرو ملتونو غونډه راوغواړي ؛هغه زیاته کړه چې پردوما دشامي دولت کیمیاوي حمله هسې یوه ډرامه او پرشام دحملې لپاره پلان شوی پلمه وه.

دسمندري جازونو نه توغول شوي ټوما هاک کروز توغندي چې دګلوبل پوزیشننګ عصري سیستم لرلوله امله دلرې هدف ویشتونکي توغندي دي اودسمندري جاز او اوبتل دواړو نه توغول کېدای شي ؛ ددې توغندیو جوړونکې شرکت رې تیون وایي چې ددوئ له لورې په جوړکړې شویوتوغندوکې ترټولو عصري ټوماهاک بلاک ۴ دي چې دواړو خواوته دسیټلایټ لنک درلودلو له امله یې دتوغول کېدونه پس هم لوری بدلېدلی شي ؛ داتوغندي متحرک هدف هم په نښه کولای شي اودخورا عصري سافټ ویر درلودلو له امله دځمکې اوورته دورکړل شوو نقشو تر منځ دمطابقت پیداکولوکارهم کوي ؛ دخپل خوراټیټ پرواز له امله یې رادار نه شي معلومولای اوپه سخت خراب موسم کې هم پرواز کوي اوله ځان سره ۱۳۵۰ کلوګرامه چاودېدونکي مواد انتقالوي .

امریکا د ۲زرونو زیات ځل داتوغندي دخپلو دښمانوپرضد کارولي دي .

ددې توغندو همدې پرمختللي نظام ته په پام سره ټرمپ روسې ته ویلي و چې تیار اوسئ ! دامریکاپرمختللي توغندي در روان دي .

یادشرکت خوداتوغندي داسې ګڼي چې ګیني څوک یې کشف کولی اوراغورځولی نه شي خوروسیې اوشام دعوا کړیده چې په اوسنۍ حملې کې یې دامریکاعصري کروز توغندي ویشتلي اوراغورځولي دي.

که ددوئ دعوی رېښتوني وي نودابه دامریکالپاره دډېرې ستر ې اندېښنې وړ خبره وي څکه دابه ړومبی ځل وي چې دامریکا داسې خوراعصري توغندي دنړۍ

په کوم ګوکې ډراغورځول کېږي ؛ له دې وړاندې چې تېر کال امریکاد خان دشیخون پرفوځي مرکز همداسې توغندویې بریدکړی و نوهلته یې ټول توغندي پر هدف لګېدلي وو ؛ نه یې کوم توغندی ویشتل شوی اوراغورځول شوی و اونه دروسې یادشام درژیم له لورې داسې دعوی رامخې ته شوی وه .

دلته ددې حملې نه پس داسوالونه راپیداشویدي چې پرشام دامریکا په مشرۍ کې دغربي اتحادیانو اوسنۍ حمله خوبه ددریم نړیوال جنګ لامل نه ګرځي ؟ اوپه شام کې دروسې په فوځي حضور کې هوایې اوځمکنۍ حمله اوبیا دشام له لورې ددې عصري امریکایې توغندودراغورځولو ددعوې نه پس خوبه دروسې اولویدیځوالو اتحادیانوترمنځ دتصادم خطر نه وي رامنځته شوی ؟

دا حمله به ګینې دشام دکورني جنګ په ختمولویاراکمولو کې کوم ځانګړی رول ولري ؟

دروسې ، شامي رژیم اوایراني ملېشوله لورې پرشامي مظلوم ولس روانوځمکنواوهوایې بریدونوکې به څه کموالی راولي اویابه ترې شامي ولس ته بل کوم نوع خیر ورسېږي ؟

که حالاتو ته ښه په سره سینه او ښه غور وکتل شي نوزما په انددې ټولوپوښتنوجواب یوښه غټ (( نه ! )) دی اوبس

ډېرخلک خوداسې دي چې دریم نړیوال جنګ یې ډېر رانږدې کړیدی اوګومان کوي چې په شام کې امریکا اوروسیه سره ښکر په ښکر شویدي اوډېرژر به دنړۍ نورطاقتونه هم ددې جنګ برخه وګرځي ؛ځني خولا پدې اند دي چې په کوچنۍ پیمانه داجنګ پیل شویدی اووایې چې په نړۍ کې دستروطاقتونوترمنځ ګرم جنګ روان دی دملګرو ملتونوداداري مشر انتونیوګوتیرس چې وا یې :نړۍ کې یوځل بیا سوړجنګ پیل شویدی ، دا دحقایقونه دهغه دبې خبرۍ لوی دلیل دی؛ دنړۍ لوی ځواکونه په تودجنګ کې اخته دي اوددې اداري دمشرحماقت ته ګوره چې وایې : نړۍ کې یوځل بیا سوړجنګ پیل شویدی ؟!

خوما وړاندې عرض وکړ چې دچارونامتو پوهان دتود جنګ خبره له وخت نه وړاندې بولي اوروانو حالاتوته په پام سره سمدستي دا امکان ردوي .

تاسې وګورئ ټرمپ چې دحملې کولوګواښ وکړ نوپوره څلور ورځې پس یې بیا حمله وکړه ؛ پدې څلورو ورځوکې روسې ،شام ؛ ایران اولبناني ملېشوته موکه ورکړل شوه چې خپل فوځونه اوفوځي مهمات مصئونوسیموته انتقال کړي .

پخپله اتحادیان داهم مني چې دروسې سره دتصادم نه دبچ کېدو په موخه لتاکیه اوطرطوس فوځي اډوکې دروسې فوځونوته له حملې نه وړاندې خبر ورکړل شوی و .

دیادولو وړ ده چې تېر کال چې امریکا په خان دشیخون پرفوځي مرکز توغندویې برید کاوه هغه مهال هم امریکا روسیه له دې حملې نه خبره کړې وه او روسې خپل فوځونه له هغه ځایه ویستلي وو .

له دې حملې نه پس خوپخپله دبشارالاسد فوځ هم دا منلی ده چې دروسې دلاربښوونې سره سم یې لا له حملې وړاندې خپل ټول امنیتي تدابیر نیولي وو .

نوددې ټولو خبرونه داحقیقت ښه روښانه شو چې نه نړیوال زبرځواکونه په خپلو کې ښکر په ښکر شویدي ؛نه دوئ یو دبل پر اهدافوګوزار کړیدی ؛ نه یو دبل موخو ته کلک تاوان رسوي ؛ نه ددریم نړیوال جنګ څه نښې شته اونه هم دوئ ددوه نړیوالوجنګونو بد عواقب هېر کړیدي چې بیابه داخطا تکرار کړي .

حمله یې دخپلو موخو لپاره کړیده ؛ نه دشام دولس خواخوږی شته ؛ نه یې څوک غم خوري اونه هم دشام دکورني جنګ دودرولولپاره څوک ربښتوني هڅې کوي ؛ په منځني ختیځ کې داسرائیلو، امریکا اونور لویدیځ ډېر شوم پلانونه دي چې دلته دکورنوجنګونو؛ ستروبربادیو ، دنظامونودړنګولو ، قتل عام ؛ لویو ورانیواودمسلمانانو په ښه دربدر کولوکې دوئ دخپلوشومو اهدافوتطبیق وینې ؛ ترڅوچې ددوئ شوم پلانونه تطبیق شوي اوناوړه موخې پوره شوې نه وي ترهغې به په یو اوبل نوم دمنځني ختیځ په مختلفو

**اوخصوصاً په شام کې دجنګ روان ساتلو هڅې کوي .**

څو میاشتې دمخه امریکا اوروسیې دواړو دشام نه دخپلوفوځونو ویستل اعلان کړل خوددې اعلان سره سره هم روسیه دشام په جنګ کې په تمامه معنی ښکېل ده اودفرانسې ولسمشر هم اعتراف کړیدی چې دامریکا ولسمشر ورسره منلی ده چې خپل دوه زره فوځیان به له شام نه ، نه وباسي .

روسیه اوس لګیاده ددولت دمخالفینو نه دیو پسې بل ښار نیسي. اودهرښار دنیولونه وړاندې په خپل بې رحمانه بمبارکې په زرونوشامي مظلوم مسلمانان وژني اودبشردحقوقوسختة غمخواره اوساتونکې امریکا اونوره غربي ټولنه یې ننداره کوي .

امریکا اونور لویدیځ که غوښتلای دروسې مخه یې په ډېرې اسانۍ نیولای شوه خو ویې نه نیوله ځکه چې مطمئن دي چې اهدافوته یې کوم جدي خطر ندی متوجې اوبیاچې کله هم وغواړي هماغسې حالات رامنځته کولای شي څرنګه چې وغواړي .

په شام کې داسې ښارونه وو چې دبشارالاسد، ایراني ملېشواوروسي فوځونوترمحاصرې لاندې یې څلورکلونه تېر کړل ؛ ددې ښارونو اوسېدونکي به ددوا اوخوراکي موادو دسخت کمښت بلکې دقحط سره مخامخ وو؛ ددوئ دوحشت نه ددې ډک حالت نه ددوئ دراویستلولپاره دملګروملتونوپه اداري کې وړاندې شوي پرېکړه لیکونه ۶ کرته روسې ویټوکړل؛ دوه ځلې یې چین هم ملګرتیا وکړه ؛ دملګروملتونو اداري ، امریکا اوټول لویدیځ دوحشت نه ډک داحالتونه لیدل خو یواځې چوپه خوله یې دهرڅه ننداره کوله اوددې وحشت دمخنیوي لپاره یې هیڅ نه کول ؛ که امریکا اونور لویدیځ نه غوښتلای روسې او اتحادیانو یې دې وحشت ته دوام نه شو ورکولای ؛ او ډېر کم فشار له لارې یې ددې هرڅه مخنیوی کولای شو خو چې نه یې غوښتلو نو ویې نکړ .

په اسلامي نړۍ کې دروانو وحشتونوپه اړه خودملګروملتونودریځ هسې هم ډېر دجرم نه ډک وي خوپه کې دبې ساري روانوجرمونوپه اړه یې چې کومه دشرم نه ډکه چوپتیا ، بې کفایتي اوغفلت ښکاره کړ نوهغه بېخي ساری نه لري اوپه هیڅ ډول نه شي توجیه کېدای .

دملګروملتونو د اداري مشر انتونیو ګوتیرس ایله په همدومره وینا اکتفا وکړه چې دشام دستونزې حل حملې نه بلکې جنګ بندي ،مذاکرات اودشامیانو په خوښه دولت رامنځته کولوکې دی .

دې کې شک نشته چې دملګرو ملتونو دمشر خبرې سمې دي خوهیڅ څوک نشته چې ترې ویوښتي چې ددې وحشي زبرځواکونو دحملو مخنیوی به څوک کوي ؟ مذاکراتوته به څوک لاربرابروي ؟ اوڅوک به دشامیانوپرضد دجبر او وحشت دلړۍ ودرولونه پس ددوئ دخوښې سره سمه اداره جوړوي ؟

سمدستي دملګرو ملتونو اداره ، امریکا اونور لویدیځ پدې کې لېوالتیا نه لري اونه هم دبشارالاسد اداره، روسیه اوایران دې ته تیار دي اونه هم په اسلامي هېوادونوکې دومره همت شته چې ددې ستونزې حل ته متې راونغاړي .

نودې ټولوخبروته په پام سره که څوک ددریم نړیوال جنګ درامنځته کېدو خبره کوي نو هغه به داسې څوک وي چې دنړیوالو اوخصوصاً فوځي چاروسره نابلده وي .

هو ! پدې کې شک نشته چې دروسې اوغرب ترمنځ کشمکش شتون لري اوپوتین دروسې دپخواني مقام دترلاسه کولو هڅې کوي خوروسیه هیڅکله هم دلویدیځ سره دتصادم طرفداره نده اونه ددې توان لري .

داسمه ده چې پرکریمیا دقبضې نه پس روسیې دلویدیځ دشدیدمخالفت پروا ونه ساتله اودکریمیا قبضې ته یې دوام ورکړ خودلویدیځ له لورې چې پر روسې کوم اقتصادي بندیزونه ولګېدل هغه دروسې لپاره ډېر تاواني ثابت شول .

خبره یواځې ددې نده چې روسیه مجهزفوځ ؛ښه طیارې اودتوغندو پرمختللی نظام لري ؛لوی جنګونه ډېرې لوېې پیسې غواړي اوچې بیا لر اوږده شي دهېوادونو اقتصادونه په کلي ډول دتباهۍ سره مخامخ



کوي ؛ په افغانستان کې دشکست خوړلوپرمهال هم روسي داهرڅه لرل؛ په نړۍ کې ترټولوزیاتې اتومي وسلې دروسي سره وې خوروسیه لړترلړه دخپلې قبضې لاندې هیوادونو دځان سره ساتلوباندې ونه توانیدله اوشوروي اتحادټوټه ټوټه شو .

داهم ډیره مهمه ده چې روسیه نیمې اروپا ته غاز ورکوي اوله دې لارې ډیرې لوېې پیسې ترلاسه کوي ؛ نه لویدیځ دغازوددې سترنعمت نه ځان محرومول اونه هم روسیه دخپلوغازو داسترمارکیټ له لاسه ورکوي چې له امله یې اقتصاد ته لوی تاوان رسیږي نوځکه خوروسیه اولویدیځ دواړه دامنیت شورى او درسنیوپه ډګر کې دیوبل سره دشدیدمخالفت نه پس هم عملاًیوبل ته په سربنکته کولو اودیوبل سره په مرستې کولوکې عار نه محسوسوي؛ دطاقت دتوازن بې انډولي هم اوس ډیره دتشویش وړ خبره نه ګڼل کیږي ځکه چې بدلون پکې ډیرژر رامنځته کیږي .

د شرقي اروپاحالا ت هم ډیرو داسې ګڼل چې ګینې ددریم نړیوال جنګ درامنځته کیدولامل به شي ؛ شمالي کوریا به دهایډرون جن بم جوړولوترڅنګ یوه په بلې پسې اتومي ازموینې کولې ؛ دجنوبي کوریا اوجاپان سره یوځای به یې دامریکا دتباه کولوګواښونه کول اوټرمپ به هم په ډیر قهر شمالي کوریا ته دسخت جواب ورکولوخبره کوله اودشمالي کوریا مهم اتحادي چین به دواړو لورو ته دصبراوزغم نه دکار اخستلوتوصیه کوله ؛ خوله ټموخلاف بیخي په ناڅاپي ډول شمالي کوریا دخپل اتومي پروګرام نه تیرېږي ؛ دډیرې اوږدې دښمنۍ پاللونه پس ددواړو کوریاګانو مشران یو بل ته لاس ورکوي اوخبره ددواړو دې کوریاګانو دیوځای کولو دهوډښکاره کولوترحده رسیږي.

دچین اوجاپان ترمنځ هم دیو لړمسایلو پرسرکشمکش شتون لري خویو هم دبل پرضددښمنۍ یا مخالفت ښکاره کولو کې دحدودونه تجاوز نه کوي دیوبل پرضد جنګي اقدام خوډیره لرې خبره ده .

دچین اوهند ترمنځ هم سرحدي سترمشکلات شتون لري اوتیرکال دومره شدید شول چې چین دهند سرحد ته څیرمه ډیرې سترې فوځي مانورئ هم وکړې خوبیاهم جانبین احساساتي نه شول او خبره دجنګ ترسرحده ونه رسیدله .

نودنړۍ ټول سترکفري ځواکونه په اسلامي نړۍ کې دروانوسترو جنګونو ، ګډوډیو ، ورانیو اوبربادیو ترشاخپل اهداف لټوي هیڅکله هم یودبل په مقابل کې دجنګ ډګرته نه راوځي اونه دجنګونوله لارې یوبل ته ستر مالي اوځاني تاوانونه رسول غواړي ؛ ځاني اومالي ټول سترتاوانونه اسلامي نړۍ ته رسیږي ؛ داسلامي نړۍ دثقافت مرکز ښکلی شام په کنډوالو بدل شوی ؛ ټول منځنی ختیځ یادجنګ په اورکې سوزي اویا پرې دجنګ توره وریځ راخپره ده ؛ فرقه یز مخالفتونه اودښمنۍ په ډیرې تیزۍ په نورې اسلامي نړۍ کې خپریږي ؛ اسلامي ګنو هیوادونو دیوبل په مقابل کې ددښمنۍ لار خپله کړیده ؛ هریوبل ته تاوان رسول خپله فتح ګڼي اوپرې جشنونه لمانځي .

په اسلامي نړۍ کې دروانو حالاتو په اړه داسلامي نړۍ حاکمان خپل خفګان ښکاره کوي خو دخپلوشخصي ګټونه یوهم تیریدونکی اودستونزو دحل لپاره فکرکولواوعملي معقول اقدام کولوته چمتو ندی .

اسلامي اخلاق اواسلامي سیاست خوډیره لرې خبره ده پراسلامي نړۍ مسلطو حاکمانو که دنړۍ دکافرو مشرانو پوره تقلید کړی اوهریو دبل په مقابل کې دسربنکته کولو اویوبل سره دحقیقي دوستۍ اومرستې سیاست کولای نونن به په اسلامي نړۍ کې هغه ستر مشکلات نه وای دکوموسره چې مخامخ ده.



# د روژې فضایل اومسائل

مفتي محمدگل سعید

الحمدلله وحده، والصلوة والسلام علی من لانبی بعده!

امابعد!

درمضان دمیاشتې روژه نیول دهجرت په دوهم کال دشعبان په دریمه ددوشنبې په ورځ فرض شول، چې فرضیت یې په قران کریم، نبوي احادیثو اواجماع دامت سره ثابت دی. درمضان مبارکه میاشت دنیکیوپسرلی دی، دخیر اوبرکت موسم دی، دامتحان موقع ده، دمسلم امت داتحادرمزاورازدی، درحمت، مغفرت او نجات مستعدفرصت دی، دتیروګناهودبخښل کیدوزمانه ده اوترټولوزیات داچې دصبر او استقامت میاشت ده، دنړۍ ټول مسلمانان په دې میاشت کې روژه وي او دځمکې پرمخ ټولو اوسیدونکو مؤمنانو ته دا حکم متوجه دی. رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: بنی الاسلام علی خمس شهادة ان لااله الاالله وان محمدرسول الله واقام الصلوة وایتاء الزکوة والحج وصوم رمضان. ژباړه: داسلام دین پرپنځوشیانوبناء دی ۱ـ ددې خبرې ګواهي ورکول چې دالله تعالی نه پرته بل څوک دعبادت لائق نشته اومحمدصلی الله علیه وسلم دالله تعالی رسول دی، ۲ـ لمونځ په صحیح طریقه اداکول، ۳ـ زکات ورکول، ۴ـ حج اداکول، ۵ـ درمضان دمیاشتې روژه نیول. رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایي: من صام رمضان ایماناً واحتساباًغفرله ماتقدم من ذنبه. ژباړه: چاچې له الله تعالی داجراوثواب دغوښتلوپه نیت درمضان دمیاشتې روژې دایمان اوعقیدې په رڼاکې ونیولې، نودهغه تېرګناهونه به ټول وروبخښل شي. همدارنګه په بل حدیث کې راغلي دي: اذادخل شهررمضان فتحت ابواب السماء وغلقت ابواب جهنم وسلسلت الشیاطین (رواه البخاری ومسلم). ژباړه: چې کله درمضان مبارکه میاشت داخله شي دآسمان دروازې خلاصې اودجهنم دروازې وتړل شي اوشیطانان په ځنځیرونووتړل شي.

وعن سهل بن سعدرضی الله عنه عن النبی صلی الله علیه وسلم قال: ان فی الجنة باباً یقال له الریان یدخل منه الصائمون یوم القیامة لایدخل منه أحدغیرهم فاذادخلواأغلق فلم یدخل منه أحد (رواه البخاری ومسلم وابن خزیمة الأأنه قال: فاذ ادخل آخرهم أُغلق من دخل شرب ومن شرب لم یظمأ أبداً. دحضرت سهل څخه روایت دی، چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: چې په جنت کې یوه دروازه ده چې ریان نومیږي، روژه لرونکي به پرهماغه دروازه جنت ته ننوزي اوبل به هیڅوک له هغې دروازې څخه نه ننوزي، اعلان به وسي، چیرته دي روژه لرونکي؟ هغوی به (جنت ته) ولاړسي اوبل به هیڅوک نه ننوزي چې کله هغوی (روژه لرونکي) دننه سي وبه تړل سي اوپه هغه دروازه به بیاهیڅوک جنت ته دننه ولاړنه سي (یعنې دادروازه دروژتیانولپاره ځانګړې سوې ده). رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: الصیام جنة (رواه احمد باسناد حسن). ژباړه: روژه دبدیودمخنیوي لپاره

ډال او سپردی. دصبراواستقامت کوم لوی درس چې ددغې میاشتې له اعمالو څخه اخیستل کیږي دکال له نورو وختونو څخه او د اسلام له نوروعباداتوڅخه نه شي اخیستل کیدای همدا وجه ده چې رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ددغې میاشتې له خصیوصیاتونه یو دا ښودلی دی چې:

وهو شهر الصبر والصبرثوابه الجنة. دادصبرمیاشت ده اودصبرمکافات جنت دی. له خوراک، څښاک اوخواهشاتونه پرهیزصبرغواړي، دشپې دعبادت لپاره قیام، ختم اوتلاوت تکلیف غواړي، دشپې دعبادت لپاره دقیام، ختم اوتلاوت تکلیف ته غاړه ایښودل صبرغواړي، له هرډول نارواقول اوعمل نه ځان ساتل په صبرسره کیدای شي نویقیناچې دغه میاشت په ټوله معنا د صبر او استقامت میاشت ده اودمومن د لارې توښه اوډژونډپه ټولومشکلاتو باندې د بري او کامیابي اسره او دخدای درضاحاصلولو او جنت ته دداخلیدلو وسیله صبردی، څکه خودخدای حبیب صلی الله علیه وسلم فرمایي چې: والصبرثوابه الجنة. دصبربدله جنت دی. دخدای دکلمې دلوړولولپاره جدوجهدکول له کومې اسانې لارې نه تیریدل نه دي دغه لاره له کړاوونوډکه ده، په دغه لاره کې لوږې دي، تندې دي، له عیش عشرت څخه محرومیدل دي، مالي تاوانونه ګالل دي، بې کوري قبلول دي، دبنداوزندان زغمل دي، اوبالاخره په سرونوباندې لوبې کول دي اوداټول کارونه یوازې له صابرانو څخه پوره کیدای شي او د رمضان المبارک بختوره میاشت دصبراوزغم دمشق اوتمرین ډیره مناسبه موقع ده، کومه فتحه اوبری چې پدغه میاشت کې مجاهدینوته په برخه کیداشي په بل وخت کې نه شي کیدای، داسلامي فتوحاتوپه تاریخ کې دبدرغزا او دمکې فتح ډیرلوی مقام لري اودادواړه واقعې دروژې په مبارکه میاشت کې شویدي، په بدرکې دخدای دلښکرواودشیطان دپیروانومقابله درمضان په ۱۷مه نیټه اومکې ته په فاتحانه ډول دخدای درسول صلی الله علیه وسلم اودهغه دصحابه کرامو رضوان الله تعالی علیهم اجمعین داخلیدل درمضان په ۱۰ مه نیټه شوي دي.

حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ددې میاشتې یوخصوصیت داښودلی چې: وشهرالمواسات که نوره مرسته اوکومک یې له وسې پوره نه وي نویوروژتي ته دروژه ماتي لپاره یوغړپ شیدې، یایوه دانه خرمایایوغړپ اوبه ورکوي چې په همدې سره هم هغه لوی اجراوثواب ترلاسه کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلی دی: من فطرفیه صائماکان له مغفرة لذنوبه وعتق رقبته من النار، یعنې چاچې په دې میاشت کې یوروژتي ته روژه ماتی ورکړپه دې کارسره به دهغه ګناهونه وبښل شي اوددوزخ له اوره به نجات وموميې. دحدیث راوي وایي مونږعرض وکړچې ای دالله رسوله! مونږهریوخوددې وس نلروچې روژتي ته روژه ماتی ورکړونودالله رسول وفرمایل: یعطی الله هذا الثواب من فطرصائماعلی مذقة لبن اوتمرة اوشربة من ماء.

همدغه پوره ثواب اواجربه الله تعالی هغه چاته ورکړي چې هغه یوروژتي ته یوغړپ شیدې، یایوه دانه خرمایایوګوټ اوبه ورکړي.

په دې مبارکه میاشت کې روژتي دفرضي عباداتوسربیره دنفلي عباداتوپه سرته رسولوهم حریص وي

څکه چې رسول اکرم صلی الله عیه وسلم ددې میاشتې یوخصوصیت دابیان کړی دی چې: من تقرب فیه بخصلة من الخیرکان کمن ادی فریضة فیماسواه ومن ادی فریضة فیه کان کمن ادی سبعین فریضة فیماسوه. یعنې چاچې په دې میاشت کې دیوې نیکي په کولوسره دالله تعالی دقرب کوښښ وکړنوهغه دهغه چاپه شان دی چې په نورووختونوکې یې کوم فرضي عبادت اداکړ، اوچاچې په دې میاشت کې یوفرض اداکړنوهغه داسې دی چې په نورووختونوکې یې اویافرضي عبادات اداکړل.

رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: للصائم فرحتان یفرحهمااذاافطرفرح واذالقی ربه فرح بصومه. ژباړه: دروژه نیونکي لپاره دوه خوشحالی دي، چې رو ژتي پرې خوشحالیږي، کله چې ماښام روژه ماته کړي نوخوشحاله شي اوکله چې دالله تعالی سره مخ شي نوبیابه پخپله روژه خوشحاله شي.

روژه دالله تعالی دقانون له مخې له ټولوعباداتونویوجلاعبادت دی، څکه چې حدیث قدسي کې راغلي چې نبی علیه السلام فرمایي: قال الله عزوجل کل عمل

ابن ادم له الاالصوم فانه لی و أنا أجزی به. د ټولو عبادتونو ثواب د فرښتو په ذريعه تر اووه سوه چنده پورې ورکول کيږي، مگر روژه يو داسې عبادت چې الله تعالی يې بدله په خپله ورکوي دفرښتو په واسطه نه. نو د روژتيانو لپاره له دې څخه بله لويه خوشحالي به کومه وي چې پروردگارعالم په خپله دوی ته دروژې بدله ورکوي.

روژتيان په دې مياشت کې دکال دنورومياشتونه زيات دخپل رب په ذکر اويا دمشغول دي، دسهارله سپيده داغ نه دماښام ترترغوني پورې که ورې کيږي څه نه خوري، دخدای حکم يې په ياددی، که تږي کيږي څه نه څښي دخدای حکم يې په ياددی، له خواهشاتونه پرعهيزکوي دخدای حکم يې په ياددی، ددوی پرهيزيوازې په ښکاره نه په پټه هم دی. په هرحال کې خپل خدای حاضرناظرگڼي، نه يوازې له خوراک، څښاک اوخواهشاتونه په ځنگ کيدل بلکې له هرډول معصيت اوگناه نه ځان ساتي، روژتي دروغ نه وايي، غيبت نه کوي، بهتان نه وايي، حرام کاروباتراوتجارت نه کوي، په لاس اوژبه څوک نه ازاروي، دچاسپکاوی اوتوهين نه کوي، دچاحقوق نه خوري، په چاظلم نه کوي ځکه چې په حقيقت کې له دغوټولوشيانونه روژه دی اودالله درسول صلی الله عليه وسلم دافرمان يې په يادد‌ی چې يې فرمايلي دي: من لم يدع قول الزوروالعمل به فليس لله حاجة فی ان يدع طعامه وشرابه. چې څوک دروغ ويل اوددروغوچارچلندپرې نه ږدي حدای متعال دده تشې لوږې اوتندې ته څه حاجت نه لري، روژتي دخيراونيکۍ لارې لټوي، دتراويحولمونځ اودقران کريم ختم کوي، دخپلې لوږې، تندې په محسوسولو دخپلو غريبانو اوبيوزلو ورونو له لوږې اوتکليف نه ځان خبروي اوهغوی سره مالي مرسته کوي. دروژې مبارکه مياشت هغه لوی فرصت دی، چې نيکان خلک ورته تياری نيسي. اودينداره خلک يې په ډيره مينه انتظارباسي. دامياشت دگناهونودبخښلو، دجنت دگټلواودجهنم له عذابونوڅخه دنجات موسم دی. دادگوتوپه شميريوڅوورځې دي چې چاترينه گټه واخيسته نوځانونه يې دابدي کاميابۍ نه برخمن وگرځول او چاچې په لهوه، لعب او غفلت کې تيرې کړې نوهغوی په تاوان اوخسران کې واقع دي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:

رغم أنف رجل ذکرت عنده فلم يصل عليّ ورغم أنف رجل دخل عليه رمضان ثم انسلخ قبل ان يغفرله ورغم أنف رجل ادرک ابواه الکبرفلم يدخلاه الجنة.

ژباړه: دهغه چادې پوزه په خاوروسپيره شي، چې زه يې په مخ کې يادکړی شم اوپرمادرود ونه وايي اودهغه چادې پوزه په خاوروسپيره شي چې دروژې مياشت ورته راغله اوورڅخه لاړه مخکې له دې چې دده گناهونه پکې وبخښل شي اودهغه چادې پوزه په خاورو سپيره شي چې په ژوندکې يې مورااوپلارسپين ږيري شي اودی جنت ته نه دننه باسي (يعني دهغوئ خدمت ونه کړي).

دروژې مياشت په حقيقت کې له يوه مؤمن نه دکامل ولي جوړولو يوه خوندوره آسماني نسخه ده، په قران کريم کې دافرمان دی چې: الا ان اولياء الله لاخوف عليهم ولاهم يحزنون. ژباړه: گورئ! بې شکه دالله وليان اودوستان هغه دي چې نه کومه وېره وي پرې اونه هغه غمجن وي، دوئ هغه خلک دي چې ايمان يې راوړی اوتقواکوي. له دې مبارک آيت نه رامعلومه شوه چې دالله تعالی ولي چې له هرې وېرې اوغم نه بچ وي هرهغه کس دی چې دادوه صفات پکې موجودوي: ۱ــ ايمان، ۲ــ تقوی. گوياچې دکاملې تقوادوهم نوم ولايت دی، له دې آيت نه وروسته دې آيت ته وگورئ: ياايهاالذين آمنواکتب عليکم الصيام کماکتب علی الذين من قبلکم لعلکم تتقون. ژباړه: ای ايمان والو! پرتاسوباندې روژه فرض کړی شوې لکه له تاسونه په مخکينيوامتونوچې فرض کړی شوې وه ددې لپاره چې تاسوتقواداره شی. په دې آيت کې يې دتقوادلاسته راوړلووسيله روژه گڼلې، دداړوآيتونوله يوځای کولوڅخه داښکاره نتيجه رااوځي چې روژه دخدای ددوستۍ اووليتوب لپاره وسيله ده. په بل مبارک آيت کې الله تعالی فرمايي: شهررمضان الذی انزل فيه القران هدیً للناس وبينات من الهدی والفرقان فمن شهدمنکم الشهرفليصمه. ژباړه: دروژې مياشت هغه مياشت دی چې په هغې کې قران کريم نازل شوی دی، چې هغه (قران کريم) دخلکو لپاره هدايت، لارښوونه اوښکاره دليلونه دي چې حق اوباطل سره بيلوي، نوکوم مکلف مسلمان

چې دامیاشت ولیدله نوضروري دي دهغې میاشتې روژه ونیسي. الله تعالی حکیم ذات دی اودحکیم ذات هیڅ یوکارهم له حکمت څخه خالي نه وي، درمضان روژې په فرضیت کې هم الله جل جلاله لوی حکمتونه، غوره مقاصداوښې پایلې نغښتې دي چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱ـ په زړه کې اخلاص اوتقوی پیداکیدل، ځکه چې له روژې څخه دروژه نیونکي یوازینۍ موخه دالله تعالی رضااواخرت ته توښه برابرول اودالله ویره مقصدوي، له همدې امله دروژې دفرضیت آیت هم په دې ټکوپای ته رسیدلی چې لعلکم تتقون. معناداچې ښایی تاسودهمدې فرضیت په اداکولودتقوی درجې ته ورسیږئ اوځانونه له هغه څه څخه وساتئ چې نه درسره ښایي.

۲ـ روژه روح ته غذاورکوي، نفس ته داستقامت ځواک ورکوي اودزړه په پاکوالي کې مرسته کوي.

۳ـ روژه په انسان کې ارادي ځواک، دتکل رښتینوالی، اودنفس دناوړه عادتونوله منځه وړلوځواک پیاوړی کوي اودصبرپه مټ دتکلیفونو ګاللو وړتیا وربخښي. دغه راز روژه دانسان عقل پرشهواتو غالبوي چې بیا د همدې په مټ دشرپرځای دخیرکارونوته ډیر متوجه کیږي.

۴ـ روژه بشري نفس ته هم روزنه ده، دانسان عادت دادی چې دیونعمت په ارزښت هله پوهیږي چې ورڅخه بې برخې شي اویاورته اړشي، نوروژه نیونکی چې کله دلوږې دردووینې، دنېستمنواوبې وزله خلکوله حاله خبریږي اودهغوی مرستې اولاسنیوی ته یې پام رااړوي.

۵ـ په روژه نیولوکې له روحاني مخلوق اومقربوپرښتوسره مشابهت دی؛ نومسلمان ته ښایی چې په روژه کې دپرښتوپه شان یوازې دالله په ذکر، تسبیحاتو، تلاوت اودعاووبوخت وي اویوازې دخپتې په غم کې نه وي.

۶ـ روژه انسان ته دامانتداري اودالله دځارنې درس دی؛ ځکه چې روژه نیونکی له خلکوپسې شاهم دخوراک، څښاک له نعمتونوځان محروموي معنایې داده چې یوازې له الله ډاریږي.

۷ـ روژه انسان ته نظم اوانظباط ورښيي، ځکه چې دانسان نفس په بیلابیلووختونوکې دخوراک، څښاک غوښتنه کوي؛ خوروژه یې داغوښتنې محدودوي اوپه دې ډګرکې یې هم دنړۍ په لروبرکې له مسلمانانوسره یووالي ته رابولي، هغوی چې ټول په یووخت روژه نیسي، اوپه یووخت یې ماتوي؛ ځکه چې دټولورب یواوعبادت یې یودی.

۸ـ روژه له نفس سره جهاددی اوددنیادګندګیواوګناهونوڅخه دپاکوالي اودخواهشاتودماتولولپاره ښه چاره ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم وایې: اې دځوانانوډلې! له تاسوچې څوک وس لري هغه دې نکاح وکړي؛ ځکه چې داددسترګوښه ټیټیوونکی اودشرمځای پاکوونکی دی، اوڅوک چې وس نلري هغه دې روژه ونیسي؛ ځکه چې داورته دشهوت له منځه وړونکی دی.

دحضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دی چې پیغمبرصلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: ددریوکسانودعانه ردیږي: عادل پاچا، روژه نیونکی ترڅوچې روژه ماته کړي اومظلوم.

## دروژې یو څو مسائل

۱ـ مسئله: که یوسړی دتل لپاره مریض وي اودصحت هیڅ هیله نلري نوداسې سړی به دشیخ فاني په څیرفدیه ورکوي لمافی الشامیة (قوله وللشیخ الفانی) الذی فنیت قوته اواشرف علی الفناء ولذاعرفوه بانه الذی کل یوم فی نقص الی ان یموت نهرومثله مافی القهستانی عن الکرمانی المریض اذاتحقق الیأس من الصحة فعلیه الفدیة لکل یوم من المرض وکذامافی البحرلونذرصوم الابدفضعف عن الصوم لاشتغاله بالمعیشة له ان یفدی ویفطرلانه استیقن انه لایقدرعلی القضاء (احسن الفتاوی ج۴ص۱٦).

۲ـ په انجکشن (ستنې) سره روژه نه ماتیږي، ځکه چې روژه له هغه شي څخه فاسدیږي چې دکوم منفذپه ذریعه معدې یادماغوته ورسیږي، په انجکشن (ستنې) سره دوادمنفذپه ذریعه نه داخلیږي بلکه دعروقواومساماتوپه ذریعه سره معدې ته رسیږي، له همدې امله روژه پرې نه ماتیږي. قال فی شرح التنویراواکتحل اوادهن اواحتجم وان وجدطعمه فی حلقه وفی الشامیة لانه اثرداخل من المسام الذی

هـم خلـل البـدن والمضرـانماهوالداخل مـن المنافـذللاتفاق علـى ان مـن اغتسـل فـى مـاء فوجدبرده فى باطنه انه لايفطروانماكره الامام رحمه الله الدخول فى الماء والتلفف بالثوب المبلـول لمافيـه مـن اظهـارالزجرفى اقامـة العبـادة لالانـه مفطـر (فتـاوى عـالمگيري ج۱ص۲۰۳).

۳ــ مسئله: که يوسړی په سفرکې وي اوپه داسې علاقه دهغه سفرشروع کيـږي چې هلته درې نيمې بجې لمراخيژي اودولس بجې په ډوبيدوبانـدې هـم دلمرسرخـي نـه ختميږي، په دې حساب سره شپه صرف درې يادرې نـيم ساعته پـاتې کيـږي اوپـاتې ټول وخت ورځ وي، يعنې تقريبايويشت ساعته ورځ وي. اوس دروژې په مياشت کې به په دې علاقه کې په څلورويشتوساعتونوکې دننه باقاعده لمراختل اوډوبيـدل کيـږي، نو لهذا هلته به باقاعده روژه نيـول کيـږي، ځکه چې پـه څلورويشتوسـاعتونوکې چې يوځل ډوډۍ وخوړل شي نوپه روژه نيولوکې هيڅ گناه نه وي، بهرحال دلمرډوبيدومتصل دې روژه ماته کړی شي اودلمرختلونه دې يونيم ساعت مخکې روژه بنده کړي. (فتـاوی فريديه ج۴ص ۹۸)

۴ـــ مسئله: که څوک درمضان دمياشتې دراتلوپرمهال ووايي: ډيره درنه مياشت راغله، ياووايي چې ښه ددروندباروالاميلمه راغی، نوپه دې ويناسره هم کـافرکيږي، پـه دې شرط چې داخبره يې درمضان مياشـتې تـه دسپکاوي اواهانـت پـه توگـه کـړې وي اوکه له دې خبرې څخه دهغه موخه اوغرض دځان ستړياواوډخپل نفس بـوج څرگنـدول وي بياپرې نه کافرکيږي. (فتاوی التاتارخانية ج۵ ص ۳۳۸، بحرالرائق ج۵ ص ۱۲۲)

۵ـــ مسئله: بـالفرض کـه څـوک ووايـې چې دادومـره روژې بـه ترڅوپـورې وي؟ زماخوزږه ترينه موږشوی دی اوډيرترينه ستړی يم، نوداويناهم الفاظ کفريـه دي، چـې ويونکی پرې کافرکيږي. (فتاوی عالمگيري ج۲ ص ۲۷، جامع الفصولين ج ۲ ص ۲۲۳)

٦ـــ مسئله په روژه کې دغاښ ايستل يـادوايي پـرې لگـول دسخت ضرورت پـه وخت کې جائز دي اوبې له ضرورت نه مکروه دی. که چيرې دوايي ياوينه نس ياگيډې ته لاړه شي اودخولې ترلاړوزياته ياورسره برابـره وي يـايي خوندمحسوس شي نوروژه يي ماتيږي. قال فی شرح التنويراوخرج الدم مـن بـين اسـنانه ودخـل حلقـه يعنـي ولم يصـل الـى جوفـه امااذاوصـل فـان غلـب الـدما وتساويا فسـدوا لافـلا الااذا وجد طعمـه بزازيةوفى الشامية ومن هذايعلم حكم من قلع ضرسه فى رمضان ودخل الدم الى جوفه فى النهارولونائمافيجب عليه القضاء الا ان يفرق بعدم امكان التحرزعنه فيكـون کـالقئ الذى عادبنفسه فليراجع. (رد المحتار ج ۲ ص ۱۰۷)

۷ـــ مسئله: په روژه کې دستنې په ذريعه دوينې ايستـل مفسدنه دي، البتـه کـه چيرته دداسې کمزورتياويره وي چې دروژې دنيولوطاقت پـه کـې نـه پـاتې کيـږي نوبيـا مکروه دی. (احسن الفتاوی ج۴ ص ۲۰)

۸ ــ مسئله: که پـه سـترگوکې داسـې دوايي څوک په روژه کې واچوي چې اثريـې په ستوني ياحلق کـې معلوم شي روژه پـرې نـه مـاتيږي، قـال ابـن عابـدين (قولـه وان وجدطعمــه فــی حلقــه) ای طعـم الکحــل اوالــدهن کــما فــی السرــاج وکــذالوبزق فوجدلونه فی الاصح بحر، قال فی النهرلان الموجودفی حلقه اثرداخـل مـن المسام الـذی هوخلـل البـدن والمفطر انما هـو الـداخل مـن المنافذ (ردالمحتارج ۲ ص ۱۰٦)

۹ـــ مسئله: دفرضي روزې دنيولو لپاره درې شرطونه دي. اسلام، عقل، بلوغ يعنـې پـه مسـلمان عاقـل اوبـالغ بانـدې درمضـان روژې فرض دي.

۱۰ـــ دروزې نيـول پـه صـحت منـد اومقيم بنيادم باندې واجب دي. يعنـې پّ ناجوړه اوپه مسافرباندې روزه نيول واجب نه دي اوکه يې ونيوله نوغوره خبره ده.

مسئله: درمضـان شريـف اودنـذرمعين اونفلي روزولپاره دشـپې نـه نيت کـول غـوره دي، اوکـه لـه زوال نـه مخکـې يـې وکړنـوهم روزه صـحيح کيـږي خـوشرط هـم هغـه دی چې نيت به دصباله اول وخت نه کوي.

۱۱ــ مسئله: دکفارې دروزې، دقضـاء دروزې اودنذرغيرمعين روزې نيت دشپې نـه کـول شرط دي، کـه دشـپې نـه يـې نيـت ونکړاودصبانه وروسـته يـې وکړنـوروزه يـې صحيح نه ده.

۱۲ـــ کـه دروژتي پـه غاښـونوکې څـه شی نخښتی ؤاودحلق نه يې تيرشو، نوکه دچنـړې پـه اندازه ؤ، نـوروزه يـې ماتـه شوه اوکه دچنړې نه کم ؤ، نوروزه يې نه ماتيږي.




# د امریـکا لخـوا بیت المقــدس ته

# د اسرائـیلي سـفارت د انتقال په اړه د اسـلامي امـارت اعـلامیه

وروسته له هغه چې د امریکایي مشر ټرمپ لخوا څه موده مخکې د مسلمانانو لومړنی قبله او د فسلطین اشغال شوې او تر غصب لاندې خاوره بیت المقدس د اسرائیلو د پایتخت په توګه پـه رسـمیت ومنـل شـوه، دادی اوس یې عملا امریکایي سفارت هم بیت المقدس ته نقل کړ.

اسلامي امارت د مستکبرې امریکا دغه بې قانونه او ظالمانه ګام پـه کلکـه غنـدي او د ټولـو مسـلمانانو او نړیوالـو منل شوو اصولو پرخلاف اشغال پلوه او ظالم پروره ګام یې بولي.

د نړۍ ۱۲۸ هیوادونـو د امریکـا لخـوا د بیـت المقـدس مغصـوبه شـوی سیمه د اسرائـیلي صهیونیسـتي رژیـم د پلازمینې په ډول منل رد کړي وو، خوامریکا بیا هم دټولي نړۍ دغوښتني خلاف اقدام وکړ .

اسلامي امارت د امریکایانو لخوا لاهم د فسلطینیانو پرخلاف د صهونیستي رژیم ملاتړ د دولتـي تروریـزم څخـه د ملاتړ ستره بیلګه بولي او د امریکا د دغـه عمـل پـه مقابـل کـې د اسـلامي او آزادي نـړۍ د عملي عکـس العمـل غوښتنه کوي.

اسلامي امارت په ځانګړي ډول په اسلامي هیوادونو او حاکمیتونو غږ کوي چې د مظلومانو په طرف کې ودریـږي، د ظالمانو د ظلم لاس لنډ کړي او د مظلوم فسلطیني ولس سیاسي، اخلاقي او عملي ملاتړ وکړي.

د افغانستان اسلامي امارت

۱۴۳۹/۸/۲۸هـ ق

۱۳۹۷/۲/۲۴هـ ش---۲۰۱۸/۵/۱۴م

# Srak Magazine

د احزاب د جنګېدونکو مشرکانو شمېر ۱۰۰۰۰ جنګيالي

له مشرکينو سره ائتلاف کوونکي : قريش، غطفان او نور قبائل

د احد غر

د مسلمانانو لخوا کېندل شوی خندق (کنده)

حره (غر)

د صحابه و شمېر ۳۰۰۰ تنه

سَلْعَ غر

وبره (غر)

د قريضه قبيلې يهود

دقباء سيمه

د عير غر

شمال

